وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ (البقرة: ۱۶۳).






(د شرک او نفاق څخه د خالص اعتقاد او عبادت زده کړه)

**د هر مسلمان اشد ضرورت**



لیکوال: حمدالله شاکري

# دمطالبو لړليک

دریيم فصل

د کلمې (لا الا الا الله محمد رسول الله) معنی او شرطونه



څلورم فصل

دايمان ارکان



پنځم فصل

دآخر زمان په واقعاتو ايمان

شپږم فصل

صحابه کرام رضي الله عنهم اجمعین



اووم فصل

دتوحید او ایمان نواقض

لسم فصل

نفاق او منافقت



يوولسم فصل

خلاصه نواقض الاسلام

## مقدمه

إن الحمد لله, نحمده ونستعينه ونستغفره, ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ومن سيئات أعمالنا, من يهده الله فلا مضل له، ومن يضلل فلا هادي له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشهد أن محمداً عبده ورسوله، صلى الله عليه وعلى آله وأصحابه ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين وسلَّم تسليماً كثيراً.. أما بعد:

د شرک، نفاق، بدعت او خرافاتو څخه خالصه عقيده د ټول دين بنسټ دی، که خدای مه کړه په عقيده کې خلل او خرابي وي هيڅ نيک عمل د قبول وړ نه دی.

په دې کتاب کې د توحيد ارکان، د اسلام او ايمان ارکان او د ايمان ماتوونکي، شرک، کفريات او نور ګمراه کوونکو عقائدو باندې بحث شوی دی.

د اسلام او ايمان د ارکانو د زده کړې سره سره د ايمان د ماتوونکو شيانو زده کړه واجب ده، څو مسلمان بنده له هغو شيانو څخه چې ايمان ته زيان رسوي او ايمان له مينځه وړي په کلکه ډه ډه وکړي .

**ددې کتاب د ليکلو هدف څه دی ؟**

١- د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم متابعت کول چې ترڅو خلکو ته صحيح عقيده وړاندې شي او دا د شرعي علم بنسټ دی او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په دغه قول کې شامل دی چې فرمايي: «بلغوا عني ولو آية» (صحيح البخاري) . ژباړه: ورسوئ زما څخه (خلکو ته دين) که څه هم يو آيت وي.

٢- د اسلامي شريعت د نصوصو په رڼا کې د صحي عقيدې زده کړه، دشرک، کفر، بدعت او ټولو

خرافاتو پر وړاندې په دلائلو کلکه مبارزه ده .
٣- زده کوونکي ته د باطل پر وړاندې د قوي حجت او دليل ور زده کول .
۴- په عبادت کې د اخلاص حرص او عبادات د ريا، نفاق او بدعت څخه پاکول .
۵- خپل ځان او ټول مسلمانانو ته د الله سبحانه وتعالی رضا او جنت ته تشويق او دعذاب څخه د نجات کوښښ او دټول بشريت لپاره دنجات فکر او کوښښ کول .

په آخر کې د دا کتاب د توحيد او وحدانيت پرستی ټاټوبي افغان ولس ته ډالی کيږي، هغه ولس چې هيڅ کله يې کفر او طاغوت ته سر نه دی ټيټ کړی او تل يې د طاغوت پر وړاندې کلکه مبارزه کړې او کوي يې.

ټولو ورونو او خويندو نه مو دا غوښتنه ده چې دغه کتاب په ډير اهتمام او دقت سره ولولئ او نورو ورونو او خويندو ته يې ورسوئ په خاصه توګه له علمي مراکزو څخه هيله کيږي چې دغه کتاب پخپل درسي نصاب کې شامل کړي په دې کتاب کې ټول ضروري عقائد دقرآن، سنتو او د امت د اجماع او سواد اعظم (اهل سنت والجماعت، مذهب ابی حنيفه رحمه الله) موافق ترتيب شوی دی .

و ماتوفيقي الا بالله عليه توکلت و اليه انيب

**حمد الله شاکري**

# لومړی فصل

# د عقېدې دعلم اهميت او فضيلت

**د عقيدې دعلم اهميت :**

دعقيدې علم د ټولو شرعي علومو سردار او اشرف علم دی، شرف يې معلوم دی چې دا علم په خالق تبارک و تعالی پورې اړه لري او بل ځکه اشرف د علومو دی چې د عقيدې او ايمان پرته هيڅ عمل د قبول وړ نه دی، دا هغه علم دی چې پر هر مکلف باندې لومړی او آخر واجب دی، لومړی دا چې کله اسلام ته داخليږي نو هغه به په توحيد د الله سبحانه وتعالی او رسالت ايمان راوړي [لا إله إلا الله، محمد رسول الله] او چې کله وفات کيږي د همدې کلمې تلقين به ورکول کيږي لکه چې جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:
«لقنوا موتاکم لا إله إلا الله» (رواه المسلم) .
يعنې: (د ځنکندن پر مهال) خپلو مړو ته د لا اله الا الله تلقين ورکوئ.
جناب نبی اکرم صلی الله عليه وسلم مونږ ته دا زيری راکړئ چې چا ددغې کلمې د شرائطو موافق ژوند تير کړ او آخري کلمه يې همدا وه نو هغه به جنت ته داخل شي .
«من کان آخر کلامه من الدنيا لا إله إلا الله دخل الجنة» (رواه احمد و ابوداود) .
يعنې: د چا چې له دنيا نه (د رخصت پر مهال) آخري خبره لا اله الا الله وي داخل به شي جنت ته .
ورونړو او **خويندو!** دا هغه علم دی چې ټولو پيغمبرانو عليهم السلام د هغه طرف ته بلنه کړې او خلک يې د الله سبحانه وتعالی توحيد او وحدانيت ته بللي دي او د طاغوت له پيروی څخه يې منع کړي دي، لقوله سبحانه وتعالی :

[وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِي إِلَيْهِ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدُونِ] (الأنبياء: ٢٥).
ژباړه: او له تا نه وړاندې چې مونږ هر پيغمبر ليږلی دی، نو هغه ته مو همدا وحی کړې ده چې: پرته له ما بل معبود نشته نو يوازې زما عبادت وکړئ.
الله عز وجل فرمايي: [وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ اُعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ] (النحل: ٣٦).
ژباړه: او يقيناً مونږ په هر امت کې د (همدې خبرې) لپاره استاذی ليږلی دی چې: د يو الله عبادت وکړئ او له طاغوت نه ځان وژغورئ.
جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم په مکه مکرمه کې ديارلس کاله خلک د توحيد عقيدې ته بللي دي او د شرک او طاغوت له پيروی څخه يې منع کړی دي.
دا چې عقيده د ټولو شرعي علومو بنسټ دی ځکه د صحي عقيدې پرته هيڅ عمل د قبول وړ نه دی، نو مسلمان ته په کار ده چې د عقيدې ضروري احکام په پوره دقت سره زده او په هغه باندې عمل وکړي.
الله سبحانه وتعالی ته دا سوال کوم چې ما او زما ټول مسلمانان ورونه او خويندې په خپل فضل او کرم د اسلام په دين باندې ثابت وګرځوي.

**د علم عقيدې تعريف:**

عقيده په لغت کې اعتقاد او باور ته وايي او په اصطلاح کې په ټولو مؤمن به شيانو باندې د زړه په تصديق سره پرته له شک څخه او د ژبې په اقرار کولو سره ايمان ته عقيده وايي.

علم عقيده دتوحيد، اسلام او ايمان له اركانو او د دغو اركانو له ماتوونكو څخه بحث كوي .

**د علم عقيدې نور نمونه :**

علم عقائد يا عقېدې ته «فقه أكبر» هم وايي چې په دې باره كې امام ابی حنيفه رحمه الله د فقه اكبر په نوم كتاب ليكلی دی، او دا كتاب په عقېده كې د تابعينو د دور لومړی ليكل شوی كتاب دی .

علم عقائد يا عقېده، د علم عقېده په نوم يادېږي چې په دې باره كې حنفي عالم امام طحاوي رحمه الله د «العقيدة الطحاوية» په نوم كتاب ليكلی دی .

علم عقائد ته علم السنه هم وايي چې په دې باره كې امام احمد رحمه الله د «علم السنة » په نوم كتاب ليكلی دی او همدارنګه دې علم ته علم توحيد هم وايي چې په دې باره كې امام ابن خزيمه رحمه الله د «التوحيد» په نوم كتاب ليكلی دی او همدارنګه دې علم ته علم ايمان هم وايي چې په دې باره كې ابن ابی شيبه او عبيد القاسمی بن سلام رحمه الله د «علم الايمان » په نوم كتاب ليكلی دی .

او همدارنګه دا علم د علم شريعت او علم اصول الدين په نوم هم يادېږي چې په دې باره كې هم كتابونه ليكل شوی دي .

# دوهم فصل

## د اسلام پنځه بناوې

**د اسلام معنى :**

اسلام په لغت کې د الله تعالى اوامرو ته تسليم او غاړه اېښودلو ته وايي، په اصطلاح کې په کلکه ګواهي کول چې د الله تعالى څخه پرته بل هيڅوك په حقه دعبادت لايق نشته، او محمد صلى الله علېه وسلم د الله تعالى استاذى او پيغمبر دى داسې ګواهي چي په زړه باور او تصديق او په ژبه اقرار، او په اندامونو ددي ګواهي په مقتضى عمل وکړي (صالح اعمال تر سره کړي).

**د اسلام پنځه ارکان (بناوې) :**

«بُنِيَ الإِسْلاَمُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ وَإِقَامِ الصَّلاَةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَحَجِّ الْبَيْتِ وَصَوْمِ رَمَضَانَ». [متفق عليه]

ژباړه: «د اسلام دين په پنځه بنسټونو باندي جوړ او ولاړ دى:

لمړې: ددې خبرې ګواهي کول چه د عبادت او بندګۍ مستحق او لايق بل هيڅ څوک نشته مګر يواځې الله جل جلاله دى، او محمد صلى الله عليه وسلم د الله تعالى ريښتينى پيغمبر او استاذى دى.

دوهم: په شپه او ورځ کښې پنځه وخته لمونځ کول (پوره له ټولو حقوقو).

دريم: د خپل مال زکات ورکول.

څلورم: د بيت الله شريف حج کول.

پنځم: د رمضان د مبارکى مياشتې روژه نيول.

نو په اسلام کښې لمړنى فرض دادى چه تر هر څه د مخه د لمړني بنسټ معنى او احکام زده کړل شي، ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم چه کله معاذ بن جبل رضى الله عنه يمن ته د يو داعي، بلونکي او ښوونکي په صفت ليږلو نو

ورته يې وفرمايل: «إِنَّكَ سَتَأْتِي قَوْمًا أَهْلَ كِتَابٍ فَإِذَا جِئْتَهُمْ فَادْعُهُمْ إِلَى أَنْ يَشْهَدُوا أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذَلِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ... الحديث». [متفق عليه]

ژباړه: يقيناً ته داسې خلکو ته ورتلونکی يې چه هغوی اهل کتاب دي، نو لومړی يې بايد ددې خبرې منلو ته راوبلې چه: نشته وړ، لايق او مستحق دعبادت او بندګۍ مګر يوازې يو الله جلّ جلاله دی، او زه- يعنی: محمد صلی الله عليه وسلم – د الله تعالی ريښتينی پيغمبر او استاذی يم، که هغوي درسره دا خبره ومنله، نو بيا ورته وښايه چه الله جل جلاله پر دوی په هره شپه ورځ کښې پنځه لمونځونه فرض کړي دي .... الحديث .

زمونږ د بحث موضوع لومړی رکن دی (اسلامي عقيده) چې توحيد او رسالت دی همدا موضوع تر بحث لاندې نيول شوې ده.

## توحيد

### د توحيد تعريف :

د توحيد لغت د «وحد، يوحد، توحيدا» له مصدر څخه دى چې لغوي معنى يې افراد (يوازې) دى .
د شريعت په اصطلاح کې توحيد دالله سبحانه وتعالى افراد او يوازېوالى په هغه څه کې چې رب تبارک و تعالى ته خاص دي، کوم چې رب تبارک وتعالى ته خاص دي ربوبيت، الوهيت، اسماء او صفات دي .
په لنډ ډول ويلاى شو، توحيد په لغت کې افراد (يوازېوالى) او په اصطلاح کې توحيد د الله تعالى افراد په افعالو، عبادت، اسماء او صفاتو کې .
چې د توحيد د ارکانو بيان به وروسته راشي .

### د توحيد اهميت

**لومړى** : اصلاً د انسانانو او جنياتو د پيدايښ هدف دا دى چې يوازې الله سبحانه وتعالى ته عبادت وکړي او د هغه (جل جلاله) سره هيڅ شى شريک نه کړي .
لقوله سبحانه وتعالى :[وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ] (الذاريات: ۵۶) .
ژباړه: او نه مو دي پيدا کړي پيريان او انسانان مګر دا چې عبادت وکړي زما .
رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «حق الله على العباد أن يعبدوه و لا يشركوا به شيئا» (متفق عليه)
ژباړه: د الله تعالى حق پر بنده ګانو دا دى چې د هغه عبادت وکړي او له هغه سره څوک شريک نه کړي.

د پورت آيت او حديث اهداف :

١- يوازې د الله سبحانه وتعالى د عبادت کولو وجوب، د [إِلَّا لِيَعْبُدُونِ] څخه مطلب خاص الله

سبحانه وتعالى ته عبادت کول او په عبادت کې د هغه سره د هيڅ شي شريک نه نيول، پس عبادت همدې ته وايي چې خاص الله تعالى لره وي، که دغير الله لپاره وي يا غيرالله پکې شريک وي هغه عبادت نه بلل کيږي .

٢- دا چې الله سبحانه وتعالى د مخلوق دخلقت او عبادت څخه بالکل غني او بې پروا دى ځکه الله تعالى خالق دى او دوى مخلوق، او مخلوق خپل خالق ته احتياج دى .

چې د پورته آيت وروسته متصل داسې فرمايي :[مَا أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ وَمَا أُرِيدُ أَن يُطْعِمُونِ] (الذاريات: ٥٧).

ژباړه: او اراده نه لرم زه له دوى څخه د هيڅ رزق روزى (ما لره او ځانونو خپلو ته) او اراده نه لرم زه ددې چې طعام راکړي ما لره .

اوفرمايي :[اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ * الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَّكُمْ فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ] (البقرة: ٢١، ٢٢).

ژباړه: عبادت وکړئ د هغه رب چې تاسې او له تاسې څخه مخکې ټول خلک يې پيدا کړي دي، تر څو تاسې پرهيزګاران شئ .

هغه ذات چې ستاسو لپاره يې ځمکه وغوړوله، آسمان يې چت جوړ کړ او له پاسه يې اوبه را ښکته کړې، په اوبو سره يې ستاسې د خوراک لپاره ډول ډول مېوې را وښکلې . نو بايد تاسې هم له الله پاک سره نور څيزونه برخه من ونه ګرځوئ .

نو هغه کسان چې د بتانو، احجارو (ډبرو) او بشر عبادت کوي او دهغوى نه د خير او د ضرر

د دفع کولو، د مشکل حل کولو، او د زړه دسکون او اطمینان او نور څه اراده لري هیڅکله به مطلب ته و نه رسیږي بلکي دا هر څه الله تبارک وتعالی لره دي (د مشکل حل، نفع او ضرر ...او نور د الله تعالی په واک کې دي) .

۳- لکه مخکې مو چې وویل د انس او جن عبادت کولو ته الله سبحانه وتعالی هیڅ اړتیا نلري بلکي دا عبادت کول د هغوی د خپل ځان په ګټه دی .

الله سبحانه وتعالی د خپل را لیږلي اسلامي شریعت په وسیله خلکو ته د هغي کارونو لارښوونه کوي چې د دوي د دنیا او آخرت ګټه ورپکې وي، او دهغه کارونو نه ئي ډاروي او ویروي چې ددوی دین او دنیا ته زیان رسوي.

**عبادت څه وايي :**

عبادت خاص الله تعالی ته په محبت او تعظیم سره ټېټېدو او عاجزی ته عبادت وایي داسې چې د (اسلامي شریعت) ټول اوامرو پر ځای کړي او له ټولو منکراتو او منع کړ شویو شیانو څخه پرهیز وکړي .

يعنې: عبادت به خاص الله تعالى لره وي او په هغه کې به هيڅ شرک نه وي .
وګورئ! د جاهليت په دوره کې به مشرکانو د الله تعالى عبادت کولو او د هغه سره به يې د بتانو عبادت هم کولو نو آيا دا عبادت د لغت له مخې عبادت شو که نه ؟
هو د لغت له مخې هغوى عبادت کولو، مشرکانو د بيت الله شريف احترام ساتلو، نذرونه يې کول . د بيت الله شريف طواف يې کولو، حج يې ادا کولو، د عاشوراء روژه يې نيوله، په الله تعالى يې سوګند کولو، دسختۍ پر مهال به يې الله ته پنا وړه او د آسانۍ او خوشحالۍ پر مهال به يې خپلو بتانو ته پنا وړله مګر د هغوى دغو ټولو عباداتو هغوى ته هيڅ ګټه ونه رسوله ولې؟
ځواب: د شرک په وجه ځکه چې د دوى عبادت خاص د الله تعالى لره نه وو بلکې په هغه کې شرک وو، اوس تاسې ووايې چې توحيد څومره اهميت لري .
زمونږ څخه الله سبحانه وتعالى خالص عبادت غواړي نه مشرکانه .
لقوله سبحانه وتعالى: [و ما أمروا إلاّ ليعبدوا الله مخلصين له الدين حنفاء] (البينه ٥) .
ژباړه: او هغوى ته پرته له دې هيڅ امر نه وو شوى چې: عبادت وکړئ د الله داسې چې خالص او سوچه کوونکى وي الله لره (د شرک او نفاق څخه پاک) په داسې حال کې چې را ګرځېدونکي وي د باطل څخه حق ته .
هر عبادت چې د اسلامي شريعت د حکم موافق نه وي هغه مردود دى (د قبول وړ نه دى) .
رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «من عمل عملاً ليس عليه أمرنا فهو رد» (المسلم) .

ژباړه: كه چا داسې عمل وكړ چې په هغه سره مونږ امر نه وي كړي يعنى زمونږ په لاره او طريقه برابر نه وي نو هغه عمل يې مردود دى نه قبليږي.

د عبادت د قبول درى شرطونه :

د عبادت د قبول لپاره لاندې درى شرطونه دي كه له دغو شرطونو څخه يو هم پكې نه وي مرود دى .

**اول-** دا چې په عبادت كې به د رسول الله صلى الله عليه وسلم متابعت وي څكه چې الله سبحانه وتعالى فرمايي :[وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ] (الحشر: ٧) .

ژباړه: او هغه څه چې رسول يې تاسې دركوئ واخلئ او له هغه څه نه چې تاسې منع كوي ډډه وكړئ او له الله څخه ووېرېږئ، يقيناً چې الله تعالى سخت عذاب وركوونكى دى .

**دوهم** :دا چې په عبادت كې به اخلاص وي يعنې خاص د الله تعالى لپاره به وي، منافقت او ريا به پكې نه وي، لقوله سبحانه وتعالى :[وَمَا أُمِرُوا إِلا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ وَيُقِيمُوا الصَّلاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ وَذَلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ] (سورة البينة: الآية ٥) .

ژباړه: او هغوى ته پرته له دې هيڅ امر نه وو شوى چې: عبادت وكړئ دالله داسې چې خالص او سوچه كوونكى وي الله لره (د شرک او نفاق څخه پاک) په داسې حال كې چې را ګرځېدونكي وي د باطل څخه حق ته او لمونځونه وكړي، زكاتونه وركړي او همدا محكم او مستقيم او روغ دين دى .

او فرمايي :[قُلِ اللَّهَ أَعْبُدُ مُخْلِصاً لَهُ دِينِي] (سورة الزمر:الآية ١۴) .

ژباړه: ووایه (ای محمده!) چې یوازې الله ته عبادت کوم په داسې شان کوم چې دین مې هغه ته سوچه کړی دی (د شرک څخه پاک) .
**دریم:** دا چې د صحیح اسلامي عقیدې پر بنسټ به وي، څکه چې دصحیح عقیدې او ایمان پرته هیڅ عمل د قبول وړ نه دی، لقوله سبحانه وتعالی :[مَنْ عَمِلَ صَالِحاً مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ] (سورة النحل: الآیة۹۷) .
ژباړه: هر چا چې ښه کار وکړ نر وي که ښځه، (خو چې) مسلمان وي، یقیناً هغه ته به پاک ژوند ورکړو او دوی ته به د دوی د ډیرو ښو اعمالو بدله ورکوو.
په دې باره کې نور ډیر آیتونه راغلي دي چې د ایمان پرته هیڅ عمل د قبول وړ نه دی .
[وَقَدِمْنَا إِلَى مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَنْثُوراً] (سورة الفرقان: الآیة ۲۳) .
ژباړه: او مونږ به وګرځوو د هغوی ټولې کړنې د دوړو په شان تیت تار په تار کړل شوې .
او فرمایي: [أُولَئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ إِلا النَّارُ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا وَبَاطِلٌ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ] (سورة هود: الآیة ۱۶) .
ژباړه: خو ددې خلکو لپاره په آخرت کې پرته له اور نه بل هیڅ نشته . ددې ځای کړنې یې بابېزه، او ټولې هلې ځلې یې خوشې ولاړې .

**د عبادت اقسام :**

عبادت معنی شامله ده ظاهري او باطني اقوالو او افعالو لره، چې دهغه څخه ځنې قولي او ځنې عملي او ځنې اعتقادي عبادات دي .

نو ویلای شو چې عبادت عبارت دی د زړه، ژبې او اندامونو له کښت څخه چې دا ټول پکې شامل دي .

**اعتقادي عبادت:**

عبارت دی له اعتقاد په الله تعالی چې رب او پیدا کوونکی د هر شي دی، مالک د ټول عالم دی، د هغه په واک کې خیر او شر، نفع او ضرر دی او په هر څه قادر او توانا دی، هیڅ شریک او سیال نلري او معبود برحق دی .

همدارنګه د الله تعالی محبت، وېره، هیله او امید، خشوع، توکل، اخلاص او نور ټول قلبي (د زړه) عبادات دي چې په عقېده پورې اړه لري.

**قولي عبادات:**

مثلاً دشهادتینو ویل، دقرآن تلاوت، دلمانځه ویل، اذکار، دعاګانې، حمد او شکر او نور قولي عبادات دي چې په ژبه پورې اړه لري یعنې ژبه پکې برخه اخلي .

**عملي عبادات :**

لکه: پنځه وخته لمونځ، زکات، روژه، حج، جهاد او نور په جوارحو (اندامونو) پورې اړه لري چې اندامونه پکې برخه اخلي .

(اصول الدین عن ابی حنیفه / دوکتور محمد بن عبدالرحمن الخمیس ص ۲۵۳)

انسانان د عبادت له مخې په دریو ډلو ویشل شوی دي :

۱- هغه ډله چې یوازې د الله تعالی عبادت کوي او له هغه سره هیڅ شی نه شریکوي (مسلمانان) .

۲- هغه ډله چې هم د الله تعالى عبادت کوي او هم د نورو (مشرکين) .
۳- هغه ډله چې د غير الله عبادت کوي (کفار) .

**د توحيد دوهم اهميت :**

د توحيد لومړى اهميت مو ولوستو چې انسانان او پيريان د عبادت لپاره پيدا شوى دي، بيا مو د ضرورت او وضاحت پر بنا د عبادت معنى او شرطونه هم بيان کړل، اوس را ځو د توحيد دوهم اهميت او ارزښت ته :

**دوهم اهميت** - د ټولو پيغمبرانو عليهم السلام بنسټيز هدف د توحيد لپاره دعوت او د طاغوت څخه د خلکو منع کول وو :

لقوله سبحانه وتعالى: [وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولاً أَنِ اعْبُدُواْ اللّهَ وَاجْتَنِبُواْ الطَّاغُوتَ فَمِنْهُم مَّنْ هَدَى اللّهُ وَمِنْهُم مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلالَةُ فَسِيرُواْ فِي الأَرْضِ فَانظُرُواْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ] (النحل: ۳۶) .

ژباړه: او مونږ په هر امت کې د همدې خبرې لپاره استازى ليږلى دى چې: اى خلکو! د يوه الله اطاعت وکړئ او له طاغوت نه ځان وژغورئ، خو ځنو ته الله هدايت وکړ او ځنې د دوى هغه وو چې ثابته شوه پرې ګمراهي (حق يې قبول نه کړ)، نو وګرځئ تاسې په ځمکه کې او وګورئ چې د هغو خلکو پايله څه شوه چې پيغمبران به يې دروغجن ګڼل .

**د طاغوت معنى :**

امام نووي، ابو ليث او جمهور فقهاء وايي چې: (الطاغوت کل ما عبد من دون الله تعالى) .
يعنې: د الله تعالى پرته د بل شي عبادت او بندګۍ ته طاغوت وايي .
امام ابن قيم يې داسې تعريفوي :

(الطاغوت كل ما تجاوز العبد به حده من معبود، أو متبوع، أو مطاع)
يعنې: ټول هغه شيان چې بنده د الله تعالی په عبادت کې د ټاکلې شريعي حد څخه تيری کوی طاغوت بلل کيږي .
ابن کثير يې داسې تعريفوي :
(فمن ترك الشرع المحكم المنزل على محمد بن عبد الله خاتم الأنبياء وتحاكم إلى غيره من الشرائع المنسوخة كفر..)
يعنې: چا چې هغه محکم شريعت چې محمد بن عبدالله چې خاتم دانبياؤ دی نازل شوی ترک کړ او په بل څه يې چې د منسوخ شريعت څخه وو حکم او فيصله وکړه (دا عمل) کفر دی .

**د توحيد دريم اهميت :**

توحيد د اسلام او ايمان رکن دی .
لقوله سبحانه وتعالى :[وَقَضَى رَبُّكَ أَلاَّ تَعْبُدُواْ إِلاَّ إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَاناً ....] (اسراء ٢٣) .
ژباړه: او ستا رب پريکړه کړې ده چې: پرته له هغه نه د بل هيچا عبادت مه کوئ او د پلار او مور سره ښه چلن کوئ .

**څلورم اهميت :**

د توحيد پرته هيڅ عمل د قبول وړ نه دی بلکي مردود او باطل دی ځکه د عمل صالح لپاره ايمان شرط دی .
[مَنْ عَمِلَ صَالِحاً مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ] (سورة النحل: الآية٩٧) .
ژباړه: هر نارينه او ښځينه مؤمن چې نيک کارونه وکړي نو مونږ به پاک ژوند ور په برخه کړو او په آخرت کې به د دوی د نيکو عملونو بدل هرو مرو ورکوو .

د توحيد اهميت د شرح فقه اکبر مصنف شيخ قاري مکي رحمه الله په خبره باندې خلاصه کوم چې ليکي:

فالقرآن كله في التوحيد وحقوق أهله وثنائهم، و في شأن ذم الشرک، عقوق أهله و جزائهم، فالحمدلله رب العالمين توحيد، الرحمن الرحيم توحيد، مالک يوم الدين توحيد، اياک نعبد و اياک نستعين توحيد، اهدنا الطراط المستقيم توحيد متضمن لسؤال الهداية الى طريق أهل التوحيد، صراط الذين أنعمت عليهم غير المغضوب عليهم و لا الضالين، الذي فارقوا التوحيد عناداً و جهلاً و افساداً .

و كذا السنة مبينة و مقررة دل عليه القرآن، فلم يحوجنا ربنا سبحانه وتعالى الى رأى فلان و ذوق فلان ووجد فلان في أصول ديننا ...، بل قال الله تعالى: الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ ...

ژباړه: پس قرآنکريم ټول په توحيد او د اهل توحيد په حقونو او صفاتو (بحث کوي)، او دشرک بدوالى او د اهل شرک نافرماني او جزا (بيانوي)، پس [الحمدلله] توحيد دى، [رب العالمين] توحيد دى، [الرحمن الرحيم] توحيد دى، [مالک يوم الدين] توحيد دى، [اياک نعبد و اياک نستعين] توحيد دى، [اهدنا الطراط المستقيم] توحيد دى چې سوال دى لارې د هدايت او طريقې د اهل توحيد ته، [صراط الذين أنعمت عليهم غير المغضوب عليهم و لا الضالين]، پرته د هغه کسانو چې په توحيد د عناد، جهل او فساد له مخې جلا شوي دي .

همدارنګه ښکاره او ټاکل شوي سنت چې دليل دى په هغه باندې قرآن، پس مونږ الله سبحانه وتعالى د د دين په اصولو کې د فلاني رأيې او د فلاني درک او ذوق او خوښې او د فلان په کار

او لاره اچولو او بنسټ ایښودلو ته نه یو احتیاج کړي، بلکي زمونږ دین کامل دی، الله تعالی فرمایي :[الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلامَ دِيناً] (المائدة:٣).

ژباړه: نن ورځ ما ستاسې لپاره ستاسې دین پوره کړ او پر تاسې مې خپل نعمت تمام کړ او اسلام مې ستاسې لپاره دین غوره کړ .

(شرح فقه اکبر/ شیخ علي قاري ص ۴۸) .

**د توحید فضیلت**

**۱ـ ډاډ او خلاصون :**

په توحید باندې د ایمان لرونکو لپاره ډاډ، امن او کامیابي ده :

لقوله سبحانه وتعالی : [الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ أُولَئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ] (الأنعام: ۸۲) .

ژباړه : هغه کسان چې ایمان راوړی او شرک یې نه وي ورسره که کړی نو همدوی ډاډمن او همدوی لار میندونکي دي .

**۲ـ توحید د ګناهونو د ببښني سبب دی :**

د انس رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمایل: «قال الله تعالی: یا ابن آدم، لو أتیتني بقراب الأرض خطایا، ثم لقیتني لا تشرك بي شیئًا، لأتیتك بقرابها مغفرة» (رواه الترمذي باسناد حسن) .

ژباړه : الله تعالی فرمایلي: ای د آدم بچیه! که ته ما ته په داسې حالت کې راشې چې ګناهونو دې د ځمکې په اندازه وي، بیا ستا زما سره په داسې حال کې ملاقات وشي چې زما سره دې هیڅ شی نه وي شریک کړي نو زه به تاته د قراب په مثل ښښنه وکړم .

الله تعالی د توحید په برکت ګناهونه ښښي: [إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاءُ] (النساء: ۴۸) .

ژباړه : بې شکه الله پاک یوازې شرک نه ښښي او له دې پرته چا ته یې چې خوښه شي هر څه ښښي .

**۳ـ الله تعالی د دوزخ اورورباندې حرام کړی دی :**

رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمایي: «ما من عبد قال: لا إله إلا الله، ثم مات على ذلك، إلا دخل الجنة»

ژباړه: کوم بنده چې ووايي: لااله الاالله، بيا مړ شي په همدې (کلمه توحيد)، داخل به شي جنت ته.

په دې حديث شريف کې دا بيان دى چې په توحيد عقيده ولري ووايي: (لا إله إلا الله)، نو دا توحيد شو او بيا د همدې توحيد په حالت کې مړ شي چې د دين څخه ګرځېدلى نه وي نو داخل به شي جنت ته.

**د داخليدو کيفيت دلته څه دى؟ آيا په پيل کې او که وروسته ؟**

د اکادمي اسلامي د عقېدې استاذ دوکتور سهل العتيبى يې داسې ځوابوي:

کچېرې چا کامل توحيد اختيار کړى وي يعنې د لااله الا الله دشروطو، ارکانو، لوازمو او غوښتنو موافق عمل يې کړى وي نو په اول کې به جنت ته داخل شي. او داسې کس باندې د دوزخ اور حرام دى،

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:«فإن الله حرم على النار من قال لا إله إلا الله يبتغي بذلك وجه الله» (متفق عليه).

يعنې: چا چې د الله تعالى د رضا لپاره کلمه لا اله الا الله ويلي وي په هغه باندې د دوزخ اور حرام دى.

مګر که چا کلمه ويلى وي مؤمن وي مګر د هغه په شرطونو او غوښتنو يې صحي عمل نه وي کړى، د ګناهونو مرتکب شوى وي او د ګناهونو څخه يې توبه نه وي ايستلى، بد کارونه يې پر نيکو کارونو درانه شوى وي نو هغه به د څه مودې لپاره دوزخ ته ځي او بيا به د همدې توحيد، ايمان او کلمې په برکت له دوزخ څخه وځي که څه هم په زړه کې يوه زره ايمان وي.

لقوله رسول الله صلى الله عليه وسلم: «أخرجوا من النار من قال: لا إله إلا الله، وفي قلبه أدنى أدنى مثقال ذرة من إيمان»

ژباړه: د دوزخ څخه به خارج کړ شي هغه څوک چې کلمه د لا اله الا الله یې ویلي وي او په زړه کې یې، ادنی (کم) ادنی ادنی په اندازه د زرې ایمان وي . (عقیده- الاکادیمة الاسلامیة) .

**۴- د [لا اله الا الله] کلمه د ځمکې او آسمانونو څخه درنده او وزمینه ده :**

د توحید کلمې ویل دومره ستره نیکي او حسنه ده چې تر ځمکو او آسمانونه څخه وزمینه ده .

ابی سعید الخدري رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

«قال موسى -علیه السلام-: یا رب علمني شیئًا أذکرك وأدعوك به، قال: یا موسى، قل: لا إله إلا الله، قال: یا رب، کل عبادك یقولون هذا، قال: یا موسى، لو أن السماوات السبع، وعامرهن غیري، والأراضین السبع في کفة، ولا إله إلا الله في کفة مالت بهن لا إله إلا الله» (الحاکم بالسناد صحیح) .

ژباړه: موسی علیه السلام ویل: ای ربه! ما ته داسې شی را وښیه چې ستا وربانديې یادوم اوستا نه غوښتنه وربانديې کوم، الله تعالی وفرمایل: لا اله الا الله وایه، ویې ویل: ای ربه! ستا ټول بندګان دا وایي . و یې فرمایل: ای موسی! کچیرې اووه آسمانانو سره له هر څه او اوه ځمکې په یوه پله کې کېښودل شي او لا اله الا الله پر بله پله کې کېښودل شي کلمه د لا اله الا الله به وربانديې درنه شي .

**۵- د کلمې په ویلو باندې د بري او لویې کامیابی (جنت) زیرۍ :**

قوله سبحانه وتعالی: [وَٱلَّذِينَ ٱجۡتَنَبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ أَن يَعۡبُدُوهَا وَأَنَابُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰۚ فَبَشِّرۡ عِبَادِ] (الزمر۱۷) .

ژباړه: (او مؤمنان هغه کسان دي) چه ځان ساتي له عبادت او بندګۍ دطاغوت څخه، او را وګرځي په عبادت او بندګۍ خپلی کښې یواځې الله

تعالى ته، نو د همدوى لپاره زيرى دى، نو اى پيغمبره زيرى وركړه زما بندګانو ته.

عنْ عُمَر بْنِ الخَطَّابِ رضي اللَّه عَنْهُ عنِ النَّبِيِّ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّم قَالَ: « ما مِنْكُمْ مِنْ أَحدٍ يتوضَّأُ فَيُبْلِغُ أَو فَيُسْبِغُ الوُضُوءَ ثُمَّ قَالَ: أَشْهدُ أَنْ لا إِلَه إِلاَّ اللَّه وحْدَه لا شَرِيكَ لَهُ، وأَشْهدُ أَنَّ مُحمَّدًا عبْدُهُ وَرسُولُه، إِلاَّ فُتِحَت لَهُ أَبْوابُ الجنَّةِ الثَّمَانِيَةُ يَدْخُلُ مِنْ أَيِّها شاءَ » رواه مسلم.

ژباړه: عمر بن الخطاب رضى الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: د تاسې څخه چې څوک اودس وكړي او د پوره آدابو سره په ښه شان اودس وكړي بيا د اودس كولو وروسته ووايي: [اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمد عبده و رسوله]، نو د ده د پاره به د جنت ټولې دروازې پرانستل شي هغه چې په كومه دروازه جنت ته تلل غواړي جنت ته تلاى شي (روا المسلم).

**د توحيد اركان:**

**د توحيد په اركانو كې د علماء كرامو لاندې اقوال دي :**

**علامه الغنيمي الميداني دمشقي په شرح الطحاويه كې ليكلي : أن للتوحيد ثلاثة أنواع، وهي:توحيد الله في ذاته، توحيد الله في صفاته، توحيد الله في أفعاله .**

**علامه قاري مكي مشهور په ملا علي قاري په شرح فقه اكبر كې ليكلي :**

**فابتداء كلامه سبحانه وتعالى في الفاتحة بالحمدلله رب العالمين ، يشير الى تقدير التوحيد الربوبيت المترتب عليه توحيد الألوهية المقتضى من الخلق تحقيق العبودية ، و هو ما يجب على العبد أولاً من معرفة الله سبحانه وتعالى . و الحاصل انه يلزم من توحيد العبودية توحيد الربوبية دون العكس في قوله سبحانه وتعالى :** وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ (الزمر :٣٨) .

و قال الله سبحانه وتعالى **:** مَا نَعْبُدُهُمْ إِلاَّ لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَى (الزمر:٣ ) .

**فان القرآن :**

**اما خبر عن الله و أسمائه و صفاته و أفعاله ، فهو التوحيد العلمي الخبري .**

**و التوحيد العلمي الخبري ، هو ما ثبت بدليل قطعي لا شك به ، كأركان الايمان و الاركان الاسلام و غيره .**

و اما دعوة الى عبادة وحده لا شريك له وخلع ما يعبد من دونه ، فهو التوحيد الارادي الطلبي .

او وروسته په حايشه ليكي :

**توحيد العبودية و توحيد الربوبية ، يعني جعل العبادة لله تعالى ، و الربوبية من**

**نسبة الخلق و الرزق و لاحياء و الامانة الى الله تعالى . و الحق أن رب و اله يردان بمعني واحى في كتاب الله تعالي .**

**او ځنو اهل علم د توحيد درى انواع بيان کړي دي : توحيد الربوبية ، توحيد الأسماء و الصفات او توحيد الالوهية .**
**چې د دواړو ډولو مقصد او مطلب يو دی ځکه په الفاظو کې فرق دی خو په معنی فرق نلري .**

**توحيد افعال يا توحيد الربوبية :**

توحيد ربوبيت دا دی چې الله سبحانه وتعالی خپل رب (پالوونکی) وګڼې او د هغه (جل جلاله) سره هيڅ شی شريک نه کړي، يعنې دا عقيده لرل چې هغه (جل جلاله) د ټول مخلوق رب دی هيڅ شريک نلري، هغه (جل جلاله) خالق (پيداکوونکی) دی هيڅ شريک نلري، هغه رازق (روزې ورکوونکی) دی هيڅ شريک نلري، هغه ژوندی کوونکی او مړ کوونکی دی هيڅ شريک نلري، هغه د ټولې هستۍ مُدبر او اداره کوونکی دی او هيڅ شريک نلري .

جاء في اصول الدين :

الإقرار بالقلب واللسان بأن الله رب كل شيء ومليكه وما شاء كان وما لم يشأ لم يكن، وأنه على كل شيء قدير، وأنه الخالق لكل شيء، وأنه له الأسماء والحسنى والصفات العلى، وأنه الإله الحق الذي لا يستحق العبادة سواه؛ فلا رب غيره ولا إله سواه ولا شريك ولا ند له، ثم إفراده بالعبادة وذلك بصرف جميع أنواع العبادة له وإخلاص الدين له. فهذا هو التوحيد الذي جاءت به الرسل (اصول الدين عند ابى

حنيفه رحمه الله / دوكتور محمد عبدالرحمن الخميس - الاعتقاد بالايمان) .

يعنې: په زړه او ژبه اقرار كول په دې باندې چې: الله د هر شي رب او پالونكى دى او هر څه دده ملك دى څه چې وغواړي هغه كيږي او څه چې نه غواړي هغه نه كيږي او هغه (جل جلاله) په هر څه باندې قادر دى او هغه د هر څه پيدا كوونكى دى، ده لره نيک او كامل اسماء او لوړ صفات دي، بل هيڅ د عبادت لايق نشته مګر يوازې همدى معبود برحق دى، پس هيڅ بل رب او پالونكى او معبود نشته مګر يوازې الله دى چې نه شريک لري او نه سيال او مثل، بيا يوازې د هغه د پاره هر قسم خالص (دشرک او نفاق څخه پاک) عبادت دى، پس دا همغه توحيد دى چې ددې هدف د پاره رسولان مبعوث شوي دي .

څنې اهل علم توحيد ربوبيت ته توحيد افعال هم وايي، يعنې د الله سبحانه وتعالى د افعالو توحيد لكه: پيدا كول، روزي وركول، مړه كول، اداره كول .... او نور چې پخپلو ټولو افعال كې يوازې دى او هيڅ شريک او مثل نلري .

په لنډ ډول ويلاى شو چې توحيد ربوبيت منسوب دى رب لره، او رب خالق، پالوونكى او څښتن ته وايي، پس بل بل خالق نشته مګر يو الله دى، بل مالک نشته مګر يو الله دى، مدبر او پالوونكى نشته مګر يو الله دى .

لقوله سبحانه وتعالى :: [إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّام] (الأعراف: ۵۴) .

ژباړه: يقيناً ستاسې رب الله دى هغه ذات چې آسمانونه او ځمكې يې په شپږو ورځو كې پيدا كړل .

او فرمايي :[ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ] (فاطر: ١٣).
ژباړه: نو همدغه الله ستاسو رب دی . پاچاهي يوازې د همده ده . او کوم څه چې تاسې يې پرته له ده نه رابولئ د خرما د زړې د نري پوستکي قدرې واک هم ورسره نشته .

**د ربوبيت خصلت :**

د توحيد ربوبيت خصلت دادی چې د مخلوقانو په پيدا کولو، اداره کولو او ملکيت کې هيڅ څوک تصرف نلري، نه ملائکه او نه هم پيغمبر او نه بل څوک، نه څوک په ژونديو کې تصرف لري او نه په مړو کې نه دطبيعت او فصل په بدلولو کې او همدارنګه خسوف او کسوف هم د الله په اراده تر سره کيږي د هغه تړل په طبيعت پورې شرک ربوبيت دی .
ټول کارونه د الله تعالی په اراده تر سره کيږي ځکه هر کار چې د هر سبب له مخې تر سره کيږي د هغه سبب هم د الله تعالی په واک او اختيار کې دی ځکه د هغه (جل جلاله) مخلوق دی
د وريځې د حرکت سبب باد دی، باد دالله تعالی په اراده او امر چليږي، د وريدو سبب وريځ ده وريځ د الله تعالی په حکم چليږي، دځمکې د شنه کيدو د پاره سبب باران دی، باران د الله تعالی په حکم اوريږي .
ننی پر مختللی ټکنالوجي د الله تعالی په اراده کې شامله ده ځکه ددې ټکنالوجی کشف او اختراع د انسان په وسيله تر سره شوي ده، او الله تعالی انسان ته ددې ټکنالوجي د کشف او اختراع توان ورکړی دی ځکه د هغه په دماغ کې يې په ميليونو حجرات ځای پر ځای کړي چې په هغه کې دا توان شته . او دغه حجرات، عصبي سيستم، او د وينې دوران او د زړه او دماغ

فعالیت ټول د الله تعالی مخلوق دی او د هغه په امر چلیږي .
د موجوده ټکنالوجۍ لپاره ټول اسباب الله سبحانه وتعالی اماده او تیار کړي دي .
دا چې د اوبو پر سطحه ستري بېړۍ حرکت کوي او نه ډوبیږي د اوبو پاسنی سطحې ته یې د مالیکولونو د جمع کیدو خاصیت ورکړی دی، دا خاصیت الله تعالی ورکړی دی .
دا چې الوتکي پر فضا کې ګرځي، فضا له هوا او غازي مالیکولونو ډکه ده، دا خاصیت الله تعالی ورکړی دی، کوم چې غازاتو ته یې دمالیکولونو د تښتې او فرار خاصیت ورکړی دی .
دا چې نن د مخابراتي سیستم لویه ټکنالوجي وجود لري دا د هوا دمالیکولونو د حرکت له وجې مینځته راغلی ده، هوا او د هغه واړه زرات او مالیکولونه د هغه سبحانه وتعالی په امر چلیږي ځکه چې دا یې ټول مخلوق دی .
«سبحان الله و بحمده سبحانه الله العظیم»

**د یو ملحد سره د امام ابوحنیفه رحمه الله مناظره :**

دوکتور محمد عثمان الخمیس په اصول الدین عند ابی حنیفه کتاب کې دا مناظره نقلوي :
امام ابی حنیفه رحمه الله د یو ملحد سره چې د الله سبحانه وتعالی د خلقت څخه انکار کړی وو او په ماده یې ایمان لرلو داسې مناظره کړې ده :
ملحد د ابو حنیفه رحمه الله څخه د الله تعالی د وجود او خلقت دلیل وغوښتلو، ابو حنیفه ملحد ته وویل: مخکې له دې چې مسئلې ته ور داخل شو ته ما ته وواېه چې :

يو كښتۍ (چې د هغې تختې خود به خود له ونو څخه جلا كيږي او پخپله كښتۍ ورڅخه جوړيږي او بيا خپله باريږي) په وسائلو بار بېړۍ پرته د بېړۍ چلوونكي د درياب په سختو موجونو كې حركت كوي او په سمه توګه خپل مقصد ته رسيږي (او پخپله خالي كيږي او بيرته ځي) .

د الله تعالى د وجود منكر (ملحد) وويل: داسې كېدل نا ممكن دي او دا هيڅ عاقل نشي منلاى، ابوحنيفه وويل: افسوس ستا په حال، ته چې دا مني چې يو كوچنى كښتۍ د كښتۍ چلوونكې پرته حركت نشي كولاى نو څنګه به د ځمكې او آسمانونو موجودات چې د حكمت څخه ډک دي پيدا كوونكى او اداره كوونكى نلري؟ ايا ددې ستر جهان موجوديت د الله تعالى پرته څنګه ممكن وي ؟

ملحد سكوت او بې ځوابه شو، حق ته تسليم شو او د امام په وسيله يې ايمان راوړ .

(اصول الدين عند ابى حنيفه، مناقب ابى حنيفه للمكي، شرح العقيده الطحاوية) .

### په مناقبو د ابو حنيفه رحمه الله كې راغلي :

د امام ابوحنيفه څخه چا پوښتنه وكړه چې د الله تعالى د پيدايښت دليل څه دى؟ وويل: د الله تعالى د پيدايښت تر ټولو حيرانوونكى دليل نطفه ده، د مور په رحم كې جنين چې الله تعالى د مور د خيټې په تياره كې او بيا د رحم په پرته او تياره كې طفل پيدا كوي، ګورو چې مور كله هلک، كله جينۍ، كله يو، كله دوه او درې زيږوي، كله غواړي چې طفل وزيږوي مګر نه پيدا كيږي او كله غواړي چې اولاد ونه زيږوي نو زيږيږي، كله غواړي چې هلک دې وي خو جينۍ شي او كله غواړي چې جينۍ شي خو هلک شي، نو

الله تعالى د هغه د مور او پلار د غوښتنې خلاف پيدا کول کوي، نو الله سبحانه وتعالى د ټول مخلوق پيدا کوونکى دى (العقيان فى مناقب أبى حنيفه النعمان)

**توحيد اسماء او صفات :**

توحيد اسماء او صفات عبارت دى له هغو اسماء او عالى صفاتو څخه چې په قرآن او سنتو کې ثابت شوى وي لکه: اسماء الحسنى او صفات العلى .

لقوله سبحانه وتعالى :

[وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ] (الأعراف:)

ژباړه: او الله پاک د غوره نومونو څښتن دى په هغو سره يې ياد کړئ او د هغو خلکو څه پروا مه ساتئ چې د الله په نومونو کې کوږوالى کوي . ډير ژر به هغوى ته د خپلو کړنو جزاء ورکول شي .

الحسنى لغت د احسن څخه اخيستل شوى دى يعنې ډير ښه، کامل او د هر ډول نقصان څخه پاک نومونه .

صفات د الله تعالى لکه: سميع (اوريدونکى)، بصير (ليدونکى)، او الله تعالى هيڅ مثل او سيال نلري، لم يلد او لم يولد دى، ژوندى دى .

لقوله سبحانه وتعالى: [لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ] (الشورى:١١).

ژباړه: هغه ته ورته هيڅ شى نشته. د هر څه ښه اوريدونکى او ليدونکى دى .

(لَا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلَا نَوْمٌ) (البقرة: ٢٥٥)، [لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ] (الإخلاص: ٣).
ژباړه: نه يې پرمانښۍ نيسي نه خوب، نه يې څوک زيږولی او نه له چا څخه زيږېدلی دی .
هغه (جل جلاله) د هيڅ شي سره مشابحت او ورته والی نه لري، لقوله سبحانه وتعالی : [لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ] (الشورى: 11).
که څوک الله تعالی دکوم شي سره مشابه وګڼې نو د توحيد څخه منکر شو.
**د الله تعالی په اسماء او صفاتو کې د هر ډول الحاد څخه منع :**
الله سبحانه وتعالی فرمايي: [وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ] (الأعراف:)
ژباړه: او الله پاک د غوره نمونو څښتن دی په هغو سره يې ياد کړئ او د هغو خلکو څه پروا مه ساتئ چې د الله په نومونو کې کوږوالی کوي . ډير ژر به هغوی د خپلو کړنو جزاء ورکول شي .
يعنې د الله په اسماء او صفاتو کې به الحاد (کږوالی) نه وي، چې دوه قسمه دی .
**تحريف** :د معنى تغير
**تعطيل** :د معنى نفى او باطلول .

**د صفاتو اقسام :**

صفات په دوه قسمه دي: صفاتي ذاتي او صفات فعلي .

**صفات ذاتي :**

ذاتي صفات هغه دي چې ازلاً او ابداً ذات الله (سبحانه وتعالى) ته لازم دي په مشيئت (ارادې) پورې تعلق نلري، لکه: حيات، علم، کلام، قدرت، سمع او بصر .

**فعلي صفات:**

فعلي صفات د الله تعالى په قدرت پورې تعلق لري هر وخت يې چې اراده شي، لکه: نزول، ژوندي کول، مړه کول، روزي ورکول، پيدا کول، رضا او غضب . (اصول الدين عند ابى حنيفه – فقه اکبر ص ٣٠١) .

**توحيد العبودية يا توحيد الألوهية :**

په عبادت کې د الله سبحانه وتعالى واحد لا شريک باندې اعتقاد ته توحيد العبوديت يا الوهيت يا د عبادت توحيد وايي لکه: په عبادت، خوف، رحمت، توکل، رغبت کې دالله تعالى واحد لا شريک ګڼل .

(الألوهية) کلمه د اله څخه اخيستل شوې ده، اله معبود بر حق ته وايي .

لقوله سبحانه وتعالى: [وَإِلَـهُكُمْ إِلَـهٌ وَاحِدٌ لَّا إِلَـهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ] (البقرة: ١٦٣).

ژباړه: همدا يو الله دى . پرته له دى مهربان او بښونکي الله څخه بل هيڅ لائق د عبادت (معبود بر حق) نشته .

رسول الله صلى الله عليه وسلم معاذ بن جبل رضى الله عنه ته وويل :

«إنك تأتي قوما من أهل الكتاب، فليكن أول ما تدعوهم إليه، شهادة أن لا إله إلا الله» وفي رواية للبخاري: « أن يوحدوا الله ».

ژباړه: ته قوم د اهل کتاب ته ځې، پس هغوی ته به لومړی د لا اله الا الله د ګواهۍ بلنه ورکړې، او د بخاري په روايت کې راځي « أن يوحدوا الله » (دا چې هغوی د الله توحيد ته را بولې) .

پورته د توحيد دری ارکان بيان شول چې يو د بل سره لازم او ملزوم دي، د قرآنکريم پيل او پای په توحيد بناء شوی دی .

[الْحَمْدُ لِلَّهِ] چې په دې کې توحيد عبادت دی ....[رَبِّ الْعَالَمِينَ] ..توحيد افعال يا توحيد ربوبيت [الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ].. توحيد اسماء او صفات .

[قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ]، په دې کې توحيد ربوبيت دی [مَلِكِ النَّاسِ]..همدارنګه ربوبيت، ...[إِلَهِ النَّاسِ]، توحيد عبادت دی .

## د توحيد مرتبې

توحيد لره درې مرتبې دي :

### اوله مرتبه:

اصل توحید، دا مرتبه د هر مسلمان وي، چې داسلام او ایمان په ارکان اعتقاد لري دا مرتبه د اصل توحید مرتبه بلل کیږي .

### دوهمه مرتبه:

دا مرتبه د لومړی مرتبې څخه لوړه ده چې مرتبه (المقتصدين) بلل کيږي، دا مرتبه د كمال واجب درجه ده، یعنې: دا چې ټول اوامر پر ځای کوي او له ټولو محرماتو څخه پرهيز كوي لكن مستحبات او نوافل نه کوي او هغه سره د مکروهاتو او مشتبهاتو د ترک څه حرص نه وي نو دا مرتبه د کمال او ایمان مرتبه ده .

### دریمه مرتبه:

دا مرتبه د دوهمې څخه لوړه ده او دا درجه د (المقربين السابقين) درجه ده، چې ټول واجبات پر ځای کوي او له ټولو منكراتو او محرماتو څخه پرهیز کوي او سره لدې نوافل او مستحبات تر سره کوي له مشتبهاتو پرهیز کوي دا درجه د کمال پر درجې باندې د کمال مستحب درجې ته لوړوالی دی.

# دريم فصل

## د كلمې (لا الا الا الله محمد رسول الله) معنى او شرطونه

پر مسلمانانو باندې واجب ده چې د توحيد په حقيقت پوه شي كوم چې مخكې بيان شو، دتوحيد او رسالت دكلمې په معنى، مقصد، حقيقت او شرطونو پوه شي ځكه د كلمې يوازې په ژبه ويل مقصد نه دي .

**اول ـ د لا اله الا الله معنى :**

(لا اله): نشه معبود بر حق، (الا الله) مګر يو الله دى .

يعنې د كلمې توحيد دوه اركان شول :

اول: لا اله – نفى ده، يعنې د عبادت هيڅ لائق نشته .

دوهم: الا الله – اثبات ، يعنې:مګر يوازې معبود برحق او لائق د عبادت الله پاك دى .

د **«إله»** معنى معبود دى، نو ټول هغه عبادتونه او بندګۍ چه د الله تعالى پرته بل چا ته كيږي هغه باطل عبادت دى، او هغه څوک چه د الله تعالى پرته د بل چا عبادت او بندګي كوي هغه مشرک او كافر ګڼل كيږي، لكه چه الله جل جلاله فرمايي: ﴿ [وَمَن يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَـهًا آخَرَ لاَ بُرْهَانَ لَهُ بِهِ فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِندَ رَبِّهِ إِنَّهُ لاَ يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ] (المؤمنون ١١٧) .

ژباړه: او هغه څوک چه د الله جل جلاله سره بل معبود هم رابلي چه له ده سره هيڅ ډول دليل وربانديې نشته، نو بې شكه دده حساب كتاب د الله تعالى سره دى، يقيناً چې كافران برى نشي تر لاسه كولاى.

د اسلام لومړی رکن په توحید او رسالت باندې ایمان راوړل دي :

«بُنِيَ الإِسْلاَمُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لا إِلـه إِلا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ وَإِقَامِ الصَّلاَةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَحَجِّ الْبَيْتِ وَصَوْمِ رَمَضَانَ». [متفق عليه].

ژباړه: د اسلام دین په پنځه بنسټونو باندي جوړ او ولاړ دی، ددې خبرې ګواهي کول چه د عبادت او بندګۍ مستحق او لایق بل هیڅ څوک نشته مګر یواځی الله جلّ جلاله دی، او محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی ریښتینی پیغمبر او استاذی دی، لمونځ ادا کول، زکات ورکول، د بیت الله شریف حج کول او د رمضان روژه نیول .

نو په اسلام کښی لمړنې فرض دادی چه تر هر څه د مخه د لمړني بنسټ معنی او احکام زده کړل شي؛ ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله معاذ بن جبل رضی الله عنه یمن ته د یو داعي، بلونکي او ښوونکي په صفت لیږلو نو ورته یي وفرمایل: «إِنَّكَ سَتَأْتِي قَوْمًا أَهْلَ كِتَابٍ فَإِذَا جِئْتَهُمْ فَادْعُهُمْ إِلَى أَنْ يَشْهَدُوا أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذَلِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ... الحديث». [متفق عليه]

ژباړه: بې شکه ته داسې خلکو ته ورتلونکې یې چه هغوي اهل کتاب او کتابیان دي، نو لومړې یې باید ددې خبرې منلو ته راوبلې چه: نشته وړ، لایق او مستحق دعبادت او بندګۍ مګر یواځی یو الله جلّ جلاله دی، او زه- یعنی محمد صلی الله علیه وسلم – د الله تعالی ریښتینې پیغمبر او استاذې یم، که هغوي درسره دا خبره ومنله، نو بیا ورته وښایه چه الله جل جلاله پر دوي په هره شپه ورځ کښی پنځه لمونځونه فرض کړي دي...» الحديث.

**لنډه دا چې:**

- د «لا إلــه إلاّ الله» مـعـنـی دا ده چـه: نـشـتـه مـعـبـود بـرحق مـګـر يـو الله تـعـالـی دې.
- تـوحـيـد تـر هغـه پـوری نـشي پـلـی کـيـدې چـه تـر څو لـه شرک څخه ځان ونـه ژغـورل شي.
- زمـونـږ د پـيـدايـش هـدف: يـواځی د يـو الله تـعـالـی بـنـدګي کـول چـه شريـک او بـرخَـوال ورسره پـکښی نـه وي.
- هغـه څـوک چـه د الله تـعـالـی پـرتـه د بـل چـا عبـادت او بـنـدګـي وکـړي هغـه مـشرک او کـافـر ګـڼـل کـيـږي.
- هـر پـيـغـمـبـر خـپـل قـوم تـوحـيـد تـه رابـلـلـی او لـه شرک څخه يـي د ځـان سـاتـلـو امـر ورتـه کـړې دی.
- د رسـول الله صلـی الله عـلـيـه وسـلـم اصلـي دعـوت او بـلـنـه هـم تـوحـيـد تـه وه، او پـه شروع کـښی يـي خـپـل قـوم تـوحـيـد تـه راوبـلـلـو، او د وخت پـاچـاهـانـو تـه يـي هـم لـيـکـونـه واسـتـول چـه هغـوئ تـه يـي پـکـښي د تـوحـيـد دعـوت ورکـړې ووه، او خـپـلـو مـلـګـرو تـه يـي هـم امـر کـړی وو چـه دهغـوئ ددعـوت لـمـړی ټـکـي دی تـوحـيـد تـه بـلـنـه وي ځـکـه د تـوحـيـد مـنـل پـه اصل کـې د ټـول ديـن مـنـل دي.
- د الله تـعـالـی حق پـر بـنـدګـانـو هـم هـمـدا تـوحـيـد دې.
- هغـه څـوک چـه پـه ربـوبـيـت او عبـادت او بـنـدګـی کـښی الله تـعـالـی يـوازې ونـه مـنـي، نـو هغـه مـسلـمـان کـيـدې نـشي، اګـر کـه ځـان تـه مـسلـمـان هـم ووايـي. (عقـيـدوي درسونـه / ابـو زکـريـا اسمـاعيـل الافـغـانـي)

**دوهم ـ د محمد رسول الله معنی :**

د مـحـمـد رسـول الله مـعـنـی دا ده چې رسـول الله صلـی الله عـلـيـه وسـلـم د الله تـعـالـی رښـتـيـنـی پـيـغـمـبـر دی، پـه رسـالـت بـانـدې د ګـواهـي ورکـولـو غـوښـتـنـه داده

چې مسلمان به ایمان لري چې الله تعالی خپل پیغمبر محمد بن عبدالله بن عبد المطلب صلی الله علیه وسلم ټولو پیریانو او انسانانو ته خپل پیغمبر او استاذی استولی دی، تر څو دوی ته امر وکړي چه یواځې د یو الله تعالی عبادت او بندګي وکړي، او د هغه ټولو شیانو له عبادت او بندګی څخه ځان وژغوري چه له الله تعالی څخه پرته یي عبادت او بندګي کیږي، او هم دوی ته د اسلام د مقدس دین احکام بیان کړي.

همدا راز دغه ګواهي ددې غوښتنه کوي چه محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی بنده او پیغمبر دی، او هغه د عبادت او بندګی حق نلري، او هیڅکله روا نه ده چه مونږ د هغه په صفت او مدح کښې له حده تیر شو، او د ألوهیت په صفاتو یي وستایو، کوم چه د الله (جل جلاله) صفات دي.

عن عبدِ اللهِ بنِ عبَّاسٍ رضى الله عنهما أنه سَمِعَ عُمَر بنَ الخَطَّابِ رضى الله عنه يقولُ وهو على المِنْبرِ: سمعتُ النبيَّ صلى الله عليه وسلم يقولُ: «لاَ تُطْرُونِي، كَمَا أَطْرَتْ النَّصَارَى ابْنَ مَرْيَمَ، فَإِنَّمَا أَنَا عَبْدُهُ، فَقُولُوا: عَبْدُ اللَّهِ، وَرَسُولُهُ». [رواه البخاري]

ژباړه: عبدالله بن عباس رضی الله عنهما له عمر بن خطاب رضی الله عنه څخه اوریدلي دي چې په منبر وو، او ویل یې چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چه هغه ویل: زما په صفت او مدح کښی له حده مه تیریږئ لکه چه نصاراو د عیسي علیه السلام په هکله د هغه په مدح او صفت کښې له حده تیر شوي وو، چه هغه ته یي الله، یا د الله تعالی زوی، یا دریم له دریو څخه ویلو، نو بې شکه زه د الله تعالی بنده یم، نو تاسو هم ووایي: چه «عَبْدُ اللَّهِ، وَرَسُولُهُ» یعنی د الله تعالی بنده او پیغمبر.

**پر مونږ باندې د رسول الله صلى الله عليه وسلم درى بنسټيز حقوق دي:**

١- د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره محبت كول، بلكه پر مونږ واجب ده چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم محبت د خپل ځان اهل او اولادونو له محبت نه مخكى او زيات وګڼو، ځكه انس رضى الله عنه له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:

«لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ، حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ». [متفق عليه].

ژباړه: يو له تاسو څخه مؤمن او مسلمان كېدې نشي تر څو چه هغه ته زه له اولادونو پلار او ټولو خلكو څخه ډير محبوب نشم، يعنى د رسول الله صلى الله عليه وسلم محبت دې له ټولو څخه مخكى او زيات وي.

٢- د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ټولو هغو قولي، فعلي او تقريري سنتو چې په قبول شوي سند سره ثابت وي منل يې پر مونږ واجب دي ځكه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سنت له ځانه نه وو بلكي د وحې پر بنا وو .

لقوله سبحانه وتعالى :[وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى، إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى] (النجم ٣-٤).

ژباړه: او خبرې نه كوي (محمد) له هوا (خپلې) نه، نه دى دغه (قرآن) مګر وحى ده چې ورته ليږل شوى ده.

تفسير انوار القرآن ددې آيتونو په تفسير كې ليكي: په حديث شريف له عبدالله بن عمرو نه روايت دى چې وايي: ما به هر څه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدل هغه مې يادول او ساتل پس قريشو زه له دغه كار څخه منع كړلم او ويې ويل: ته هر څه چې د رسول الله صلى

الله علیه وسلم نه آوري هغه لیکې حال دا چې هغه هم بشر دی او کله د غصې په وخت کې څه وايي . همغه وو چې له لیکلو مې لاس واخیست او دغه موضوع مې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره شریکه کړه: جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: « اکتب، فوالذي نفسي بیده ما خرج مني إلا الحق» (فتح الباری او صحیح الجامع) .

یعنې: ولیکه ځکه قسم پر هغه ذات دی چې زما روح د هغه په واک کې دی، زما د ژبې څخه د حق څخه بغیر څه نه دي وتلي .همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: زه بغیر له حق څخه بل څه نه وایم.

دغه مهال ځنو صحابه کرامو عرض وکړ یا رسول الله! تاسې کله مزاخ (ټوکې) هم کوې؟ و یې فرمایل حتی که مزاخ (ټوکې) وکړم هم بغیر له حق څخه بل څه نه وایم.

٣- د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروي کول، یعنی د هغه ټول امرونه پر ځان منل او پلي کول، او ټول هغه څه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ورڅخه منع فرمایلی ده ځان ورڅخه وژغوري.

لقوله سبحانه وتعالی:[وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ] (حشر ٧)

ژباړه: او هغه څه چې رسول یې تاسې درکوئ واخلئ او له هغه څه نه چې تاسې منع کوي ډډه وکړئ او له الله څخه ووېرېږئ.

د الله تعالی رضا د رسول الله صلی الله علیه وسلم متابعت او پیروي ده :

[قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللهُ] (ال عمران 31) .

ژباړه: ووایه (ای محمده)!: کچیرې تاسې له الله سره محبت لرئ نو زما پیروي وکړئ چې الله له تاسې سره محبت وکړي.

او فرمایي: [فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّىَ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُواْ فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسْلِيمًا] (النسآء ۶۵) :

ژباړه: نو نه! (ای رسوله) ستا په رب قسم دی چې دوی تر هغه پوره مؤمنان نشي کیدای څو پورې چې تا ته په خپلو ټولو شخړو کې حکم (فیصله کوونکی) کړي او بیا ستا د پریکړو په اړه پخپلو ځانونو کې کوم خپګان و نه مومئ او (دغه پریکړه) په ډیرې خوښی سره و مني .

(عقیدوي درسونه/ابو زکریا اسماعیل الأفغاني)

**د کلمې شرطونه**

لکه څنګه چې د لمانځه، زکات او حج او نورو لپاره د صحت شرطونه دي چې پرته له هغه شرطونو نه صحي کیږي همداسې د کلمې لپاره هم شرطونه دي لکه: علم، یقین، اخلاص، صدق، محبت، انقیاد، قبول، دباطل او طاغوت نه منل .

**د توحید د کلمې شروطونه**




**اول شرط – علم :**

دا چې د [لا اله الا الله، محمد رسول الله] په معنی او مقصد به پوه وي، چې نشته بل لایق د عبادت مګر یو الله دی، یعنې عبادت یوازې او یوازې الله لره دی او محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی بنده او رسول دی .

[فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ] (محمد: ١٩).
ژباړه: پوه شه چې پرته له یو الله نه بل هیڅ معبود نشته .
او رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: « من مات وهو يعلم أن لا إله إلا الله دخل الجنة» (رواه المسلم) .
يعنې: څوک چې وفات شي او هغه كس په دې باندې پوه وي چې نشته لائق د عبادت مګر الله دى داخل به شي جنت ته .
مطلب دا چې ددې كلمې څخه مقصد او مطلب د توحيد او رسالت ايمان دى، كه څوک يې پرته له ايمان څخه وايي په معنى او مقصد يې نه پوهيږي هغه ته څه ګټه نلري، مثلاً كوم كافر دا كلمه وايي خو ايمان نه وربانديې لري بلكي پر خپل كفر ولاړ وي هغه ته د كلمې ويل څه ګټه نلري او نه هم پرته له ايمان څخه د كلمې په يوازې الفاظو باندې مسلمان كيداى شي .
همدارنګه ځنې كفار چې په اسلامي هيوادونو كې اوسيږي هغوى ځنې وخت اسلامي كلمات وايي، لكه: ما شاء الله، ان شاء الله، چې دا كلمات د ايمان او يقين له مخې نه بلكي د عادت له مخې وايي چې څه ګټه ورته نلري .
**دوهم شرط – يقين :**
يقين دا چې دغه كلمه به د كامل او پوره يقين پر بنا وايي، د يقين ضد شک دى يعنې: شک او ترديد به پكې نه كوي، لقوله سبحانه وتعالى: [إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا] (الحجرات: 15).
ژباړه: حقيقي مؤمنان هغه كسان دي چې پر الله او د هغه په رسول يې ايمان راوړى بيا يې هيڅ شک نه دى كړى .

او جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: « أشهد أن لا إله إلا الله، وأني رسول الله، لا يلقى الله بهما عبد غير شاك فيهما إلا دخل الجنة » رواه مسلم.

ژباړه: په دې ګواهي چې نشته لايق د عبادت مګر يو الله دی او زه (محمد) رسول د الله دی، په دې دواړو (توحيد او رسالت) کې چې بنده هيڅ شک ونه کړي (پوره يقين ولري) داخل به شي جنت ته .

**دريم شرط – اخلاص :**

دا چې دا کلمه به يوازې د الله سبحانه وتعالى لپاره او د ثواب دحصول لپاره وايي، د ريا، منافقت له مخې به نه وي .

لقوله سبحانه وتعالى :

[وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حنيفاء] (البينة: ٥).

ژباړه: او هغوی ته پرته له دې هيڅ امر نه وو شوی چې: عبادت وکړئ دالله داسې چې خالص او سوچه کوونکی وي الله لره (د شرک او نفاق څخه پاک) په داسې حال کې چې را ګرځېدونکي وي د باطل څخه حق ته

او نبي صلى الله عليه وسلم فرمايي: «أسعد الناس بشفاعتي يوم القيامة من قال لا إله إلا الله خالصا من قلبه » (رواه البخاري).

ژباړه: د قيامت په ورځ به د خلکو څخه زما د شفاعت زيات سعادت دهغه چا په برخه وي چې چا دزړه په اخلاص سره ويلي وي چې: لا اله الا الله .

**څلورم شرط – محبت :**

واجب ده چې دا کلمه به د محبت له وجې وايي چې ضد يې بغض او بد ګڼل دي .

لقوله سبحانه وتعالى: [وَمِنَ النَّاسِ مَن يَتَّخِذُ مِن دُونِ اللَّهِ أَندَادًا يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللَّهِ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِّلَّهِ] (البقرة: ۱۶۵).

ژباړه: او ځينې خلک داسې هم شته چې د الله پرته نور شيان د هغه شريکان نيسي . له هغوى سره دومره مينه کوي چې بايد يوازې له الله سره شوى واى او هغوى چې ايمان يې راوړى له الله سره کلکه مينه لري .

**پنځم شرط – صدق :**

دا کلمه به په صدق سره وايي چې دصدق ضد دروغ دي، يعنې دروغ به يې نه ګڼي او همدارنګه د منافقت له وجې به نه وي چې پر ژبه يې وايي لکن په زړه کې د هغه څخه منکر او کافر وي .

**شپږم شرط – انقياد :**

ددې کلمې شپږم شرط دادى چې د کلمې غوښتنو ته به غاړه ږدي، داسلامي شريعت ټول اوامر او نواهى ته به تسلميږي او هغه به مني انکار به ورڅخه نه کوي، ځکه چې ايمان او عمل صالح لازم او ملزوم دي.

**اوم شرط – قبول :**

د کلمې اوم شرط قبول دى چې ضد يې رد او انکار دى .

**آتم شرط – د باطل انکار :**

د کلمې آتم شرط دادى چې د طاغوت او باطل څخه به انکار کوي، هيڅ باطله او طاغوتي عقيده به نه اختياروي، داسلامي عقېده سره باطله او طاغوتي عقيده بالکل نه جمع کيږي .

(الاکاديمة الاسلامية – عقيده المستوي الاول / دوکتور سهل عتيبي) .

# ځلورم فصل
# د ايمان اركان

د اسلام پنځه اركان (كلمه شهادت، لمونځ، زكات، روژه او حج) دي دا چې زمونږ بحث عقيده ده لومړى ركن چې په توحيد او رسالت باندې ايمان لرل دي تفصيلي بيان شو .
اوس د ايمان اركان بيانوو :

**د ايمان تعريف :**

ايمان په لغت كې تصديق او باور ته وايي او دشريعت په اصطلاح كې ايمان په زړه تصديق او په ژبه اقرار كول دي په ټولو مؤمن به شيانو .

(الإيمان إقرار باللسان وتصديق بالجَنان (فقه أكبر) والأعمال ليست داخلة فيه) .

دا چې په ايمان كې ولې اعمال داخل نه دي د امام ابى حنيفه رحمه الله دلائل په لاندې ډول دي :

أولا: أنه في كثير من الأوقات يرتفع العمل عن المؤمن، ولا يجوز أن يقال ارتفع عنه الإيمان .

ثانيا: أن النبي صلى الله عليه وسلم دعا الناس إلى أن يشهدوا أن لا إله إلا الله والإقرار بما جاء به من الله تعالى، وكان الداخل في الإسلام مؤمنا بريئا من الشرك ثم نزلت الفرائض بعد ذلك على أهل التصديق.

ثالثا: أن المضيِّع للعمل ليس مضيِّعا للتصديق؛ فلو كان المضيِّع للعمل مضيعا للتصديق.

رابعا: أن الهدى في التصديق ليس كالهدى في الأعمال، قال الإمام أبوحنيفة: "إن الهدى في التصديق بالله ورسوله ليس كالهدى في ما افترض من الأعمال.

هذا ما استدل به الإمام أبو حنيفة. أما أصحابه فاستدلوا بما هو آت:
أولا: أن الإيمان في اللغة التصديق؛ وعمدتهم في ذلك قول الله تعالى: {وَمَا أَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَنَا} "سورة يوسف: الآية17".
قال النسفي: "الإيمان معروف أنه عند أهل اللسان التصديق لا غير".
وحكى الباقلاني الإجماع عليه فقال: "فإن قال وما الدليل على ما قلتم؟ قيل: إجماع أهل اللغة قاطبة على أن الإيمان في اللغة قبل نزول القرآن وبعثة النبي صلى الله عليه وسلم هو التصديق"
ثانيا: أن الله فرق بين الإيمان والعمل في غير موضع من كتابه قال تعالى: {الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ} "سورة العصر: الآية3".
(اصول الدين عند ابى حنيفه / دوكتور محمد عبدالرحمن الخميس ص ٣٥٥) .

**ژباړه:**

اول: په زياتو وختونو کې د مؤمن څخه عمل پورته کيږي، خو دا جواز نلري چې ووايو د هغه څخه ايمان پورته شوی دی .
دوهم: رسول الله صلى الله عليه وسلم خلک د توحيد ګواهی (لا اله الا الله) ته او اقرار په هغه څه چې د الله د طرفه راغلی وو دعوت کړل، هغوی وو په اسلام کې ننوتي مؤمنان او پاک وو له شرک څخه او بيا وروسته فرائض نازل شوي.
دريم: ضايع کوونکي د عمل، ضايع کوونکی د تصديق نه دی، کچېرې د عمل ضايع کېدې نو د تصديق هم کېده .

څلورم: هدايت په تصديق کې دی نه په اعمالو.

او صاحبان د ابی حنيفه رحمه الله په لاندې دلائلو استدلال کوي.

اول – ايمان په لغت کې تصديق ته وايي، لقوله تعالى: {وَمَا أَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَنَا} (يوسف:١٧).

امام النسفي وايي: ايمان د اهل لسان په نزد تصديق ته وايي نه بل څه ته، همدارنګه الباقلاني وايي چې په دې باندې اجماع ده چې ايمان تصديق ته وايي.

دوهم – الله سبحانه وتعالى د ايمان او عمل صالح په مينځ کې فرق کړی چې فرمايي: {الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ} (العصر:٣)

**د اسلام او ايمان تر مينځ څه فرق دی ؟**

والإيمانُ هوَ الإقرارُ والتصديقُ والإسلامُ هو التسليمُ والانقيادُ لأوامرِ اللهِ تعالى ففي طريقِ اللغةِ فرقٌ بينَ الإيمانِ والإسلامِ ولكنْ لا يكونُ إيمانٌ بلا إسلامٍ، ولا إسلامٌ بلا إيمانٍ، فهما كالظهرِ معَ البطنِ. والدينُ اسمٌ واقعٌ على الإيمانِ والإسلامِ والشرائعِ كُلِّها (فقه اكبر / ابی حنيفه رحمه الله).

ژباړه: ايمان اقرار او تصديق ته وايي او اسلام د الله تعالى اوامرو ته غاړه ايښودلو او تسليم ته وايي، د لغت له مخې په اسلام او ايمان کې فرق دی لکن ايمان پرته له اسلام او اسلام پرته له ايمان څخه نه صحي کيږي دا دواړه داسې دي لکه: خيټه او شا او د اسلام دين شامل دی په اسلام او ايمان او ټول شريعت سره.

**د ایمان ارکان :**

د ایمان ارکان ځینې اهل علم اوه بولي لکه: په الله تعالی ایمان، په ملائکو ایمان، په آسماني کتابونو ایمان، په رسولانو ایمان، په ورځ د آخرت ایمان، په قدر او شر ایمان او په بیا ژوندي کیدو ایمان .

او ځینې اهل علم یې شپږ بولي: په الله تعالی ایمان، په ملائکو ایمان، په آسماني کتابونو ایمان، په رسولانو ایمان، په ورځ د آخرت ایمان، په قدر او شر ایمان .

د دواړو مقصد یو دی ځکه په ورځ آخرت ایمان اصلاً په بیا ژوندي کیدو همدارنګه: میزان، حساب، دوزخ او جنت باندې ایمان دی چې په قرآني نص ثابت دي.

جبرئیل علیه السلام رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د اسلام او ایمان په اړه داسې تعلیم ورکړی دی :

الإسلام أن تشهد أن لا إله إلا الله، وأن محمداً رسول الله – صلى الله عليه وسلم ، وتقيم الصلاة، وتؤتي الزكاة، وتصوم رمضان، وتحج البيت إن استطعت إليه سبيلاً .....، قال: فأخبرني عن الإيمان؟ قال: أن تؤمن بالله، وملائكته، وكتبه، ورسله، واليوم الآخر، وتؤمن بالقدر خيره وشره (رواه مسلم) .

ژباړه: اسلام دا دی چې: ګواهي ورکول په دې چې نشته لایق د عبادت مګر الله دی، او محمد د الله تعالی رسول دی، او لمونځ اداکول، او زکات ورکول، او د رمضان روژه نیول او د حج ادا کول څوک یې توان لري .

ویې ویل ما خبر کړه له ایمان څخه ویې ویل: ایمان دا دی چې: په الله تعالی ایمان، په ملائکو ایمان، په کتابونو ایمان، په رسولانو

ایمان، په ورځ د آخرت ایمان او په قدر او شر (چې د الله د جانبه دي) ایمان لرل دي .

**اول – پر الله سبحانه وتعالی ایمان :**

د ایمان لومړی رکن د الله سبحانه وتعالی په وجود، ربوبیت، الوهیت، اسماء او صفاتو باندې ایمان لرل دي چې تفصیل یې مخکې د توحید په کلمه کې بیان شو، په الله سبحانه وتعالی باندې د ایمان او اعتقاد لرلو خلاصه :

١- د الله تعالی په وجود باندې ایمان، د الله سبحانه وتعالی په وجود د ایمان لرلو دلیل او ستره نښه دا ده چې هغه سبحانه وتعالی ورځ په شپه او شپه په ورځ بدلوي، له ژوندي څخه مړی او له مړي څخه ژوندی پیدا کوي، نو ایا د الله پرته بل څوک شته چې دا کار تر سره کړي؟ نه.

لقوله سبحانه وتعالی :

[تُولِجُ اللَّيْلَ فِي الْنَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الَمَيَّتَ مِنَ الْحَيِّ وَتَرْزُقُ مَن تَشَاء بِغَيْرِ حِسَابٍ] (آل عمران :٢٧) .

ژباړه: ته شپه په ورځ کې ننه باسي (شپه په ورځ بدلوې) او ته ژوندی له مړي را وباسې او مړی له ژوندي او چې چا ته دې خوښه شي بې حسابه رزق ورکوې .

او د الله تعالی په وجود باندې عقلي دلیل مو مخکې د ابی حنیفه رحمه الله مناظره چې له یو ملحد سره یې کړې وه بیان کړه .

٢- الله تعالی یو دی په ذات او صفاتو کې شریک نلري، رب، خالق او رازق د ټول عالم دی او هیڅ شریک نلري .

لقوله سبحانه وتعالی: [وَإِلَـهُكُمْ إِلَـهُ وَاحِدٌ لَّا إِلَـهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ] (البقرة : 163) .

ژباړه: همدا يو الله دى . پرته له دى مهربان او بښوونكي الله څخه بل هيڅ لائق د عبادت (معبود بر حق) نشته.
دليل دا دى كچيرې العياذ بالله دوه خدايان واى نو د كائناتو په تنظيم كې به خامخا بې نظمې راغلى وه .
لقوله سبحانه وتعالى :[لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلاَّ اللَّهُ لَفَسَدَتَا فَسُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ] **(الانبياء ٢٢)** .
ژباړه:كچيرې په ځمكه او آسمان كې پرته له الله نور خدايان واى نو د دواړو نظام به كډوډ شوى وو د عرش څښتن له هغه څه نه پاك دى چې مشركان يې وايي .
٣- د الله سبحانه وتعالى سره هيڅ شى مشابه نه دي نه په ذات او نه په صفاتو كې :
لقوله سبحانه وتعالى :[لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ] (الشورى ١١) .
ژباړه: هغه ته ورته هيڅ نشته . د هر څه ښه اوريدونكى او ښه ليدونكى دى .
٤- الله سبحانه وتعالى معبود برحق دى (لا اله الا الله) چې تفصيل يې په توحيد الوهيت كې بيان شو .
٥- الله سبحانه وتعالى هميشه دى او هميشه به وي، فنا كېدل نلري او تل تر تله ژوندى دى .
لقوله سبحانه وتعالى: [كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ] (القصص :٨٨) .
ژباړه:له هغه پرته هر شى هلاكېدونكي دي .
وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لا يَمُوتُ] (الفرقان: ٥٨) .
ژباړه: او په هغه ژوندي ذات توكل وكړه چې هيڅكله نه مري
٦- هر څه چې په جهان او عالم كې تر سره كيږي د الله تعالى په اراده تر سره كيږي،

هغه جل جلاله په هر څه قادر دی، د ټولو شیانو مرګ او ژوند، عزت او ذلت د هغه (جل جلاله) په واک کې دي، کتبه رسول، دفع ضرر، خیر او شر ټول د الله تعالی د طرفه دي .
[قُلِ اللَّهُمَّ مَالِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَاءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَاءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ إِنَّكَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ] (آل عمران: ٢٦).
ژباړه: (ای محمده!) ووایه: ای الله! خاوند د پاچاهۍ یې، ته پاچاهي هغه چا ته ورکوې چې ستا خوښه شي او چې له چا نه یې چې ستا خوښه شي ترې اخلې یې . چاته دې چې خوښه شي عزت ورکوې او چې چا ته دې چې خوښه شي ذلیلوې یې . ستا په لاس کې خیر دی او ته په هر شي قادر یې .
[ومَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ] (التكوير: ٢٩) .
ژباړه: او نه شئ قصد کولی تاسې (د سمې لارې) مګر هغه چې اراده وفرمایي الله چې پالونکی د ټولو عالمیانو دی .
٧- الله تعالی په هر څه عالم دی د هغه څخه هیڅ شی پټ نه دي .
[وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَهٌ وَفِي الأَرْضِ إِلَهٌ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ] (الزخرف ٨٤).
ژباړه: او همدغه یو الله په آسمان کې معبود دی او په ځمکه کې هم . دحکمت خاوند دی او په هر څه پوه دی .

**دوهم ـ پر ملائکو ایمان :**

پر ملائکو باندې ایمان لرل د ایمان رکن دی او د ملائکو د وجود څخه انکار کفر دی .
لقوله سبحانه وتعالی :[آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللهِ وَمَلآئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ] (البقرة : ٢٨٥).

ژباړه: رسول او مؤمنانو په هغه څه ایمان راوړی دی چې رسول ته نازل شوي دي . دوی ټولو په الله، او د هغه په ملائکو، او کتابونو او رسولانو ایمان راوړی دی .

وقال تعالی:[مَن كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلآئِكَتِهِ وَرُسُلِهِ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَالَ فَإِنَّ اللهَ عَدُوٌّ لِّلْكَافِرِينَ] (البقرة:٩٨) .

ژباړه: او څوک چې وي دښمن د الله او د هغه د ملائکو او رسولانو او (په خاصه توګه) د جبریل او مکاییل پس یقیناً الله دښمن دی لپاره د کافرانو.
.

او الله تبارک وتعالی فرمایي :[وَمَن يَكْفُرْ بِاللهِ وَمَلاَئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلاَلاً بَعِيدًا] (النساء:١٣٦) .

ژباړه: او هر څوک چې کافر شي پر الله او د هغه په ملائکو او د هغه په رسولانو او په ورځ د آخرت نو یقیناً ګمرا شوی په ګمراهۍ لرې سره (له حق) .

ملائکې د الله تعالی مخلوق دی چې له نور څخه پیدا شوي دي، یو لحظه د الله تعالی نا فرماني نه کوي شپه او ورځ د الله تعالی په عبادت او فرمانبدرای کې مشغول دي، زوجیت پکې نشته نه نر دي او نه ښځې، شمیر یې ډیر زیات دی چې یوازې الله تعالی پرې پوهیږي .

ملائکې د الله تعالی د حکم او ارادې پرته هیچا ته د نفع او ضرر اجازه نلري په هغه باندې توسل شرک دی .

ملائکې خوړل او څښل نه کوي، نکاح نه کوي او نه هم خوب کوي.

ابلیس او جنیات د ملائکو له ډلې څخه نه دي ځکه ملائکې له نور څخه پیدا دي او ابلیس له اور څخه پیدا شوی دی .

ملائکې مؤمنان خوښوي او کافران نه خوښوي .

ملائکو ته الله تعالی ددي قدرت ورکړی چې په مختلفو شکلونو ځان بدل کړي .

که څه هم د ټولو ملائکو کار او دنده د الله تعالی تسبیح او تهلیل او د هغه د امر پر ځای کول دي او د هرې یوې وظیفه معلومه ده، د ځینو ملائکو وظیفې په لاندې توګه دي :

**د جبرائیل علیه السلام وظیفه:**

پیغمبرانو ته وحی راوړل، د الله تعالی په حکم د کافرانو په مقابل کې د مسلمانانو مرسته کول، د الله په حکم د نافرمانو بندګانو باندې دعذاب راوړل .

**د مکائیل علیه السلام وظیفه :**

د الله تعالی په حکم د مخلوقاتو د رزق او روزۍ انتظام، د وریځو، بارانونو، بحرونو او سیندونو انتظام .

**د ملک الموت وظیفه:**

د الله تعالی په حکم د ساه لرونکو مخلوقاتو څخه روح اخیستل .

**د اسرافیل علیه السلام وظیفه :**

د الله تعالی په حکم د د قیامت د قیام پر مهال د ټولو مخلوقاتو د فنا کولو او بیرته ژوندې کولو لپاره د شپېلۍ پوکی کول .

**کرام الکاتبین :**

د خلکو ښه او بد عملونه لیکل .

**حفظه ملائکی:**

د انسانانو ساتنه او څارنه .

**نکیر او منکر :**

په قبر کې د مړو څخه د رب، دین، نبي پوښتنه کوي .

**د الله تعالی په کتابونو ایمان :**

الله سبحانه و تعالی پر خپلو رسولانو باندې د بشر د هدایت او لارښوونې لپاره کتابونه نازل کړي دي چې د هغو په وسیله خلک د الله توحید ته بلل شوي، په نیکو کارونو ورته امر شوی او له بدو کارونو څخه منع شوي وو .

د الله تعالی په کتابونو او صحیفو باندې ایمان لرل د ایمان رکن دی، د الله تعالی په کتابونو باندې د ایمان لرلو مقصد دا دی چې دغه کتابونه د الله د طرفه نازل شوي، د هغه (جل جلاله) بلا کیف کلام دی، په هغو ټولو کې موجود اوامر او نواهي حق دي .

او دا ایمان لرل چې مخکنې کتابونه د قرآن په نزول سره منسخ شوي دي .

[وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللّهُ] (سورة المائدة: ٤٨)

ژباړه: مونږ تاته په حقه هغه کتاب نازل کړی دی چې له تا وړاندې کتابونه رښتني ګڼې او ساتونکی یې دی پس حکم کوه په ما انزل الله .

د حکم څخه مطلب دادی چې د قرآن پرته په هیڅ پخواني کتاب باندې عمل او حکم کول جایز نه دي .

او دا ایمان لرل چې قرآنکریم د تحریف نه پاک دی، لقوله سبحانه وتعالی :[إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ] (الحجر:٩).

ژباړه: مونږ پخپله نازل کړی ذکر (قرآن) او مونږ خامخا دهغه ساتونکی یو .

آسماني کتابونه او صحیفې په لاندې ډول دي :

تورات په موسی علیه السلام نازل شوی .

زبور په داود علیه السلام نازل شوی .

انجیل په عیسی علیه السلام نازل شوی .

قرآن په محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوی .
سل صحیفې دي :
۱۰ صحیفې په آدم علیه السلام نازلې شوې .
۱۰ صحیفې په ابراهیم علیه السلام نازلې شوې .
۵۰ صحیفې په شیش علیه السلام نازلې شوې .
۳۰ صحیفې په ادریس علیه السلام نازلې شوې دې .

**په قرآنکریم باندې ایمان :**

یقیناً چې قرآنکریم د الله تعالی کلام دی، د الله تعالی آخرنی کتاب دی د قرآن نه وروسته د قیامت تر ورځې بل کتاب نه نازلیږي او نه هم بل پیغمبر راځي، د قرآن په نزول سره ټول کتابونه منسوخ شوی دي .

دا مقدس کتاب د الله تعالی له طرفه د جبرئیل په واسطه په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې په (۲۳) کلونو کې نازل شوی دی چې (۳۰) سپارې او (۱۱۴) سورتونه لري .

مونږ په قرآن ایمان او باور لرو چې الله تعالی دغه کتاب د ټول بشریت د لارښوونې لپاره نازل کړی دی، نړیوال کتاب دی په کوم قوم او ژبې پورې خاص نه دی بلکې د ټول بشریت لپاره لارښوونه کوي او غوښتنه ترې کوي چې د الله تعالی په توحید باندې ایمان راوړئ، د طاغوت څخه منع شئ تر څو په دنیا او آخرت کې د سعادت او نیکمرغی ژوند مو په برخه شي .

قرآنکریم د لوح محفوظ څخه ټول په یو ځل په همغه ترتیب چې اوس موجود دی د جبرائیل په واسطه د دنیا آسمان بیت العزت ته نازل شوی او وروسته لږ لږ په (۲۳) کلونو کې نازل شوی دی .

رسول الله صلی الله علیه وسلم یو شمیر صحابه ؤ ته هدایت کاوه چې هغوی قرآن حفظ کړي او ځینو ته یې دنده سپارلې وه چې قرآن ولیکي .
قرآنکریم څنګه چې الله تعالی نازل کړی دی جبرئیل علیه السلام به پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته لوستلو او رسول الله صلی الله علیه وسلم به په هماغه شان صحابه کرامو ته تعلیم کړی دی او پرته له تغیر او تحریف څخه مونږ ته رسیدلی دی او د تل لپاره به د تحریف څخه پاک او منزه وي .

**په رسولانو باندې ایمان :**

د الله تعالی رسولان د الله تعالی استاذې دي چې د الله توحید او عبادت ته بلوونکي او لارښوونکی دي او د طاغوت او شر څخه منع کوونکي دي .
په رسولانو باندې ایمان لرل د ایمان څلورم رکن او حتی د یو رسول څخه انکار کفر دی .
[إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ أَنْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللَّهِ وَرُسُلِهِ وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَيُرِيدُونَ أَنْ يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذَلِكَ سَبِيلاً أُوْلَئِكَ هُمْ الْكَافِرُونَ حَقّاً وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَاباً مُهِيناً وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ أُوْلَئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ أُجُورَهُمْ وَكَانَ اللَّهُ غَفُوراً رَحِيماً] (النساء:150).
ژباړه: یقیناً کوم کسان چې په الله او د هغه په رسولانو کافران کیږي او غواړي چې د الله او د هغه د رسولانو تر مینځ جلاوالی راولي او وایي چې مونږ په ځینو رسولانو ایمان راوړو او په ځینو یې نه راوړو او غواړي چې په دې مینځ کې یوه لیار ونیسي .
په رسولانو باندې د ایمان مقصد دادی چې هغوی د الله تعالی د جانبه د بشریت د لارښوونې لپاره را لیږل شوی دي، په هغوی باندې نازل شوي حق دي، د هغوی شریعت حق دی .

پيغمبران عليه السلام د كبيره او صغيره گناهونو څخه پاک دي، ټول نارينه دي، ځينې پر ځينو نورو افضل دي، د ټولو پيغمبرانو افضل او آخرنى رسول محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم دى .

**د رسول او نبي تر مينځ فرق :**

رسول هغه پيغمبر ته وايي چې نوى كتاب او نوى شريعت د الله تعالى د طرفه وربانديې نازل شوى وي .

نبي هغه پيغمبر دى چې د الله تعالى د جانبه د خلكو د لارښوونې لپاره مبعوث شوى وي دا چې نوى كتاب او شريعت پرې نازل شوى وى او كه نه نبى بلل كيږي .

**د قيامت په ورځ ايمان :**

يوم القيامة ځكه ورته وايي چې په دې ورځ ټول خلكو د حساب او جزاء لپاره را ټوليږي او يوم الآخر ځكه ورته وايي چې دا آخري ورځ ده .

د قيامت په ورځ ايمان لرل د ايمان پنځم ركن دى، د قيامت په ورځ ايمان لرل شامل دي: ايمان په بيا ژوندي كېدو، حساب، ميزان، جنت او دوزخ باندې .

أصلُ التوحيدِ وما يصحُ الاعتقادُ عليهِ، يجبُ أنْ يقولَ: ءامنتُ باللهِ، وملائِكتِهِ، وكتبِهِ، ورُسُلِهِ، والبعثِ بعدَ الموتِ والقدرِ خيرِهِ وشرِّهِ منَ اللهِ تعالى، والحسابِ، والميزانِ، والجنةِ، والنارِ، وذلكَ حقٌ كُلُّهُ. (فقه اكبر/ابى حنيفه) .

ژباړه: په ورځ د قيامت باندې دايمان راوړلو مقصد دادى چې دقيامت د ورځې او د هغې څخه وروسته راتلوونكو حالاتو په باره كې چې مونږ ته قرآن او سنتو څه بيان كړي د هغو ټولو منل دي . او دا عقيده لرل چې دا دنيا

فنا کېدونکي ده، او په بیا ژوندي کېدو، حساب او جزا باندې عقېده لرل دي .

الله سبحانه وتعالی فرمایي :

[ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُواْ وَالَّذِينَ هَادُواْ وَالنَّصَارَى وَالصَّابِئِينَ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحاً فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ] **(البقرة: ٦٢).**

ژباړه: یقیناً هغه څوک چې مؤمنان دي که یهودیان او نصارا او یا صابیان که هر چا پر الله او ورځ د آخرت ایمان راوړی وي او غوره عمل یې کړی وي . نو د الله تعالی په نزد ورته اجر او ثواب دی . نه به پرې ډار وي او نه غم .

د قیامت په ورځ ایمان شامل دی په لاندې امرو باندې :

١- په قبر کې د ملائکې په پوښتنه کولو او همدارنګه د قبر په نعیم باندې لپاره د اهل طاعت او عذاب لپاره اهل معصیت .

لقوله سبحانه وتعالی :[ النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ] (غافر ٤٦).

ژباړه: د دوزخ اور دی چې سهار او ماښام هغوی ته ور وړاندول کیږي او چې کله د قیامت ساعت راشي نو امر به وشي چې آل فرعون سخت عذاب ته داخل کړئ.

د بخاري او مسلم په حدیث شریف کې له ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی چه رسول‌الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: «إن أحدكم إذا مات عرض عليه مقعده بالغداة والعشي، إن كان من أهل الجنة فمن أهل الجنة وإن كان من أهل النار فمن أهل النار، يقال له: هذا مقعدك حتي يبعثك الله إليه يوم القيامة » (رواه البخاري و مسلم)
.

ژباړ: کله چې یو د تاسې وفات شي هغه ته به خپل ځای سبایي او بیګایي ورښودل کیږي کچیرې د اهل جنت څخه وي هغه ته به د اهل جنت ځای ور ښودل کیږي او که اهل دوزخ وي هغه ته به د دوزخ ځای ور ښودل کیږي، او هغه ته ویل کیږي دغه دی ځای ستا تر څو د قیامت په ورځ الله تعالی تا هغه ته ولیږي.

۲- په بیا ژوندي کېدو باندې ایمان، کله چې دوهمه شپیلی ووهل شي نو خلک د الله حضور ته حاضر کړ شي .

قال الله تعالی[ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ لَمَيِّتُونَ- ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ] **(المؤمنون: ۱۵-۱۶).**

ژباړه: بیا تاسې له دې وروسته حتماً مړه کیدونکی یاست، او بیا به د قیامت په ورځ بې له شکه ژوندي راپورته کړای شئ .

۳- د قیامت په ورځ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حوض کوثر باندې ایمان لرل .

لقوله سبحانه وتعالی: [ (إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ . ] (الكوثر:۱).

۴- د قیامت په ورځ په حساب او جزا باندې ایمان لرل .

[ إِنَّ إِلَيْنَا إِيَابَهُمْ- ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُمْ ] (سورة الغاشية:۲۵-۲۶) .

ژباړه: یقیناً چې بیرته به مونږ ته راځئ، بیا د دوی سره حساب زمونږ کار دی .

۵- په میزان باندې ایمان لرل، داسې تله چې د ذرې په اندازه نیک او بد اعمال تلې .

[وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ] (الأنبياء:۴۷) .

ژباړه: مونږ به د قیامت په ورځ د انصاف تلې کیږدو نو په هیچا به هیڅ ډول تیری ونه شي .

۶- په پل صراط باندې ایمان لرل، کوم چې د دوزخ د پاسه جنت ته تیر شوی چې هر څوک به د خپل نیک عمل په وسیله له هغه څخه تیرېږي څوک د سترګو د رپ په شان، څوک د برق په شان، څوک د باد په شان، څوک د آس د تګ په شان .... تیرېږي .

۷- په جنت او دوزخ ایمان لرل، چا چې ایمان راوړی وي او ښه عملونه یې کړي وي هغه به جنت ځي، او چا چې ایمان نه وي راوړی هغه به همیشه په دوزخ کې وي . او د چا چې ګناهونه پر نیکو کارونو درانه شوی وي هغو به د څه وخت لپاره دوزخ ته ځي .

لقوله سبحانه وتعالى: [فَأَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ * فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ * وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ * فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ * وَمَا أَدْرَاكَ مَا هِيَهْ * نَارٌ حَامِيَةٌ] (القارعه) .

۸- د رسول الله صلى الله عليه وسلم په شفاعت باندې ایمان لرل چې الله تعالی هغه ته د شفاعت اجازه کړې ده او په ورځ د آخرت به د خپل امت شفاعت کوي .

نبي صلى الله عليه وسلم فرمايي: «أسعد الناس بشفاعتي يوم القيامة من قال لا إله إلا الله خالصا من قلبه » (رواه البخاري) .

ژباړه: د قیامت په ورځ به د خلکو څخه زما د شفاعت زیات سعادت دهغه چا په برخه وي چې چا د زړه په اخلاص سره ویلي وي چې: لا اله الا الله .

**په قضاء او قدر ایمان :**

قدر یا تقدیر په دې معنی دی چې الله (جل جلا له) په ټولو پیدا کړیو اشیاؤ باندې د پیدا کیدو مخکې عالم دی او هغه (جل جلا له) له ځانه سره لیکلي دي او هر څه چې مینځ ته راځي هغه د الله جل جلا له په اراده باندې مینځ

ته راځي او په تقدير باندې ايمان لرل د ايمان يو ركن دى لكه څنګه چې جبريل عليه السلام رسول الله صلى الله عليه وسلم د ايمان په باره کې تعليم وركوي چې ايمان دا دى چې: « أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ » (بخاري -۴۹۴۹ او مسلم -۲۶۴۹)

(ايمان عبارت دى له) په الله جل جلاله، ملائكو، كتابونو، پيغمبرانو، ورځ د آخرت او د ښه او بد په تقدير باندې ايمان لرل .

د انسان عادت دا دى چې هر شى د خپل فكر او پوهې له رويه څيړي، د الله (جل جلا له) قدرت او د قدرت دومره لوړې نښانې دي چې د هغه څيړل د انسان په عقل او پوهې سره ډير مشكل دي .

څكه مونږ د سبا ورځې په راتلونكو حالاتو باندې نه پوهيږو علم نه وربانديې لرو، خو الله (جل جلا له) چې څه مخلوق پيدا كړى دى په ازل كې په هغوى باندې پوره علم لري .

مثلاً يو كس ګناه كوي چې دا د الله (جل جلا له) نافرماني كول دي الله (جل جلا له) ور باندې ناراضه كيږي خو د خپل بنده په دغه حالت باندې هم په ازل كې عالم دى چې زما بنده به په فلاني وخت كې دغه نافرماني كوي، او يو بل كس ښه عمل كوي الله (جل جلا له) له هغه څخه راضي كيږي او په ازل كې په هغه باندې علم لري چې زما دغه بنده به په فلانې وخت كې دغه ښه كار تر سره كوي .

يعنې دمخلوق په ټولو حادثاتو باندې په ازل كې الله (جل جلا له) عالم دى او په تقدير كې يې شامل دي .

الله (جل جلا له) د خپلو بندګانو په حالاتو باندې علم لري او هغه يې په تقدير كې شامل

دي او انسان يې مختار کړی دی او هغه ته يې دتصميم نيولو توان ورکړی دی او د هغه د پاره يې وسائل آماده کړی دي تر څو دهدايت لاره اختيار کړي او که څوک وغواړي د هدايت لاره اختيار کړي الله (جل جلا له) به هغه ته هدايت وکړي :

[وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ * وَمَنْ يَهْدِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ مُضِلٍّ أَلَيْسَ اللَّهُ بِعَزِيزٍ ذِي انْتِقَامٍ] (الزمر ۳۶-۳۷) .

ژباړه: او هر څوک چې الله گمراه کړ بيا هيڅوک ورته لار نشي ښودلای او چاته چې الله هدايت وکړي بيا يې هيڅوک بې لارې کولای نشي . آيا الله په هر څه برلاسی او پوره انتقام اخيستونکی نه دی؟

او هر چا چې د خير اراده وکړه الله جل جلا له به د هغه مرسته وکړي او هغه لار به ور ته آسانه کړي:

لقوله تعالی: [فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى * وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى * فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَى] (الليل ۵-۷) .

ژباړه: چاچې ورکړه او پرهيزگاري وکړه، او ښيگڼه يې رښيتنې کړه، نو ډير ژر به يې د آسانی لپاره جوړ کړو .

يعنې: چا چې د الله جل جلا له په لار کې شتمني ولگوله او د الله له نافرمانۍ نه يې ډډه وکړه او په ښه خبره يې تصديق وکړ، نو هغه ته به د آسانې لارې آسانتيا ورکړو .

**په تقدير باندې ايمان لرلو مقصد :**

۱- د الله تعالی په علم باندې ايمان لرل چې د هغه علم پر ټولو کائناتو باندې احاطه کړې ده او د هغه له علم څخه د ذرې قدرې شی هم پټ نه دي .

[هُوَ اللَّهُ الَّذِي لا إِلَهَ إِلا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ] (الحشر:۲۲) .

ژباړه: الله هغه ذات دی چې پرته له هغه هيڅ معبود نشته. په پټو او ښکاره پوه دی.

٢- د الله تعالی په اراده باندې ايمان، يعنې هر څه چې تر سره کيږي هغه به د الله تعالی په اراده تر سره کيږي ځکه دا هر څه د الله تعالی مخلوق دی او ټول مخلوق د ده په واک کې دی.

[وَمَا تَشَاءُونَ إِلا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ] (التکوير:٢٩).

٣- په دې باندې ايمان لرل چې الله تعالی ټول پيدا کړي شيان په لوح محفوظ کې ليکلي او ثبت کړي دي.

[أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاءِ وَالأَرْضِ إِنَّ ذَلِكَ فِي كِتَابٍ إِنَّ ذَلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ] (الحج/٧٠).

ژباړه: او آيا ته په دې نه پوهيږې چې د آسمان او ځمکې ټول څيزونه دالله په علم کې دي؟ دا ټول هر څه په يو کتاب کې دي او دا کار الله پاک ته ډير آسان دی.

٤- هر څه د الله خلقت دی، مثلاً انسان چې هر کار کوي د الله تعالی دتقدير او ارادې پرته يې نشي کولای ځکه د انسان ټول بدن، د بدن سيستم، فعاليت کول د الله تعالی مخلوق دی.

[وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ] (الصافات:٩٦).

ژباړه: او الله پيدا کړي يی تاسې او هغه چې کوئ تاسې.

# پنځم فصل
# د آخر زمان په واقعاتو ایمان

### د حضرت مهدي په ظهور باندې ایمان :

حضرت مهدي به په آخر زمان کې په داسې يوه زمانه کې چې د خلکو تر مینځ به ډیر اختلافات وي او زلزلې به ډیرې وي پیدا (تولد) کیږي او د نورو انسانانو په شان به دنیا ته راځي نوم يې احمد یا محمد او د پلار نوم به يې عبدالله وي د بې بي فاطمه رضی الله عنها له نسل څخه به وي او د ده ظهور به ددین د قیام او نصرت باعث وګرځي دی به اوه کاله حکومت وکړي دځمکې له مخ څخه به ظلم او بې عدالتي له مینځه یوسي، عدل به قایم کړي او په دې دوره کې به بې انتها نعمتونه وي ځمکه به ښه زرغونه او حاصل خیزه وي خلک به ډیر مالونه او نعمتونه لاس ته راوړي.

له ابوسعید خدري نه روایت دی چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي :

(یخرج في آخر أمتي المهدي، یسقیه الله الغیث وتخرج الأرض نباتها ویعطي المال صحاحاً وتکثر الماشیة، وتعظم الأمة، یعیش سبعاً أو ثمانیاً) (مستدرک حاکم-۴/۵۵۷-۵۵۸، سلسلة الصحیحة).

ژباړه: زما د امت په آخره زمانه کې به مهدي ظهور وکړي الله تعالی به هغه ته ډیر بارانونه او حاصل خیزه ځمکې وبخښي، مال به زیات شي اهلي حیوانات به زیات شي او اسلامې امت به لوی شي هغه به د ظهور څخه وروسته اوه یا اته کاله ژوند وکړي .

ابن کثیر وايي: « د هغه په زمانه کې به کرهنیز پیداوار او میوه جات ډیر شي همدارنګه ډیر مال، قوي پاچا، استوار دین،

ذليل دښمن او خير برکت به د هغه په زمانه کې بر قرار وي » (النهاية / الفتن و الملاحم -١/٣١).
همدارنګه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :
«أبشركم بالمهدي يبعث على اختلاف من الناس و زلازل، فيملأ الأرض قسطا وعدلا كما ملئت جوراً و ظلماً يرضي عنه ساكن السماء وساكن الأرض يقسم المال صحاحاً... » .
ژباړه: تاسې ته د مهدي د ظهور زيرې در کوم په داسې زمانه کې چې خلک به په خپل مينځ کې اختلافات لري او زلزلې به ډيرې زياته وي په دغه وخت کې به دی ظهور کوي چې د ځمکې څخه به ظلم ورک کړي او پر ځای به يې عدل قائم کړي د ځمکې او آسمان اوسيدونکي به دده دعملکرد نه راضې او خوښ وي او د خلکو په مينځ کې به مالونه په ښه شان تقسيموي، يو کس ووېل د صحاحا معنی څه ده؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «عادلانه تقسيم » او وروسته زياتوي: غني او بې نيازه الله تعالی به دی په ټولنه کې پيدا کوي او هر لوری ته به عدل خور شي تر دې چې يو کس به ناري وهي چې څوک مال ته ضرورت لري پرته له يو کس څخه به بل هيڅ څوک اواز نه کوي . مهدي به هغه کس ته ووايي ځه ګدام واله ته ورشه او هغه ته ووايه چې مهدي ويل چې ما ته مال را کړه .
ګدام واله به ور ته ووايي: هر څومره مال چې غواړې هغه واخله او خپل کور ته يې يوسه، هغه کس چې کله مال خپل کور ته ورسوي له خپل ځان سره به وايي زه د محمد صلی الله عليه وسلم په امت کې له حريصو کسان څخه وم . ايا د هغه فضل او احسان به زما د پاره کفايت و نه کړي ..

راوي وايي: هغه مال به دوباره واخلي اوګډام واله ته به يې وړاندې کړي هغه به ورته وايي ما چې څه بخشش کړ هغه واپس نه اخلم . دا دوره به اوه يا اته يا نه کاله ادامه لري او د هغه د دورې نه پس به بيا سختي او تکليفونه پيل شي .
{ مسند احمد (37/3) «مجمع الزوائد» (313/7 - 314) او «عقيدة أهل السنة والاثر في المهدي » (ص 177) شيخ عبدالمحسن عباد }.

د حضرت مهدي له سترو نښانو څخه يوه نښانه داده چې کله د دښمن لښکر د هغې د ماتې د پاره د مکې په لورې روان شي، مګر کله چې يوې هوارې دښتې او صحرا ته ورسيږي د لښکر اوله حصه او آخره حصه به په ځمکه کې ډوب شي، خلک چې کله ددې حادثې نه خبر شي نو وروسته به پوه شي چې هغه حقيقي مهدي دي.

جناب نبى کريم صلى الله عليه وسلم فرمايي «فاذا کانوا ببيداء من الارض خسف بهم ...» (صحيح مسلم).

ژباړه: تر هغه چې د ځمکې يوې بيديا ته رسيږي او هلته دوبيږي

## د عيسي عليه السلام ظهور :

عيسى عليه سلام به د دجال د خروج نه وروسته د الله تعالى په حکم ځمکې ته راکوز شي دغه وخت کې به ځمکه د دجال د فتنو او فساد نه ډک وي د هغه نزول به د داسې خلکو په مينځه کې وشي چې د دجال دمقابلې دپاره جمع شوى وي او دوى به غواړي ددجال پر وړاندې وجنګيږي .

ابن کثير وايي :

دا قول مشهور دى چې عيسى عليه السلام به د دمشق په (البيضاء شرقي) مناره نازل شي په څنو کتابونو کې مې ليدلي دي چې د دمشق د امويانو د جامع جومات په شرقي البيضاء نومي

مناره به شکته شي او دا وخت به د لمانځه د ادا کولو وخت وي او د مسلمانان امام به ده ته وايي چې د امامت د پاره مخکې شه عیسی علیه السلام به ووایي: تاسې مخکې شئ ځکه تاسې ته قامت ویل شوی دی او په یوه بل روایت کې راغلی دي چې په دې خاطر چې الله تعالی ته دغه امت محترم دی نو له تاسې څخه امام ونیسئ (صحیح مسلم، و «النهایة الفتن و الملاحم-١/١٤٤-١٤٥).

د نواس بن سمعان په یوه اوږده حدیث شریف کې د عیسی علیه السلام نزول داسې بیان شوی دی: « الله تعالی به په دغه وخت کې عیسی علیه السلام مبعوث کړي، د هغوی نزول به د دمشق شرقي سپینه مناره باندې وي د هغې په بدن باندې به زیړه جامه وي هغه به د دوو فرښتو په وزرونو باندې تکیه کړی وي، چې کله هغه سر ښکته کړي نو د اوبو څاڅکې به د هغه د ویښتو نه راتوئی شي او چې سر مبارک پورته کړي نو د ملغلرو د رنګ په شان څاڅکې به د هغه په تندې راتوئی شي، د هغه مبارک ساه چې کوم کافر ته ورسي هغه به فوراً د مرګ پیاله وڅکي د هغه د ساه مسافه به د هغه د نظر لګیدو په اندازه وي (تر څومره ځای چې د هغه نظر پریوځي تر همغه ځای به د هغه د ساه تأثیر وي) دغه وخت به حضرت مسیح هم د دجال په تلاش کې وي عیسی علیه السلام به دجال تعقیب کړي او هغه به بیت المقدس ته نږدې باب لد نومې ځای کې قتل کړي . (رواه المسلم)

**علماؤ په آخر زمان کې د عیسی علیه سلام د نزول حکمت داسې بیانوي :**

**اول:** د یهودو د درواغو ردول چې هغوی وایي مونږ عیسی علیه السلام وژلې دی، پس الله تعالی به د دوی دروغ ښکاره کوي او عیسی

عليه السلام به د يهودو رئيس دجال او د هغه پيروان په قتل رسوي .
الله تعالى فرمايي :[وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللّهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَـكِن شُبِّهَ لَهُمْ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُواْ فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلاَّ اتِّبَاعَ الظَّنِّ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا] (النساء ١٥٧) .
ژباړه: او د دوی ددې خبرې (له کبله) چې مونږ بې له شکه د الله رسول د مريم زوی عيسى وژلى دی . په داسې حال کې چې دوی هغه نه دی وژلى او نه يې هم په دار ځړولی دی، بلکې پر دوی (دغه پېښه) همشکله شوی وه . او يقيناً هغه کسان چې د هغه په اړه يې اختلاف کړی دی د هغه په اړوند شکمن دي چې په دې هکله د ګمان له پيروی څخه نور هيڅ کوم علم نه لري او په رښتيا چې دوی عيسى نه وو وژلى .
**دوهم:** حضرت عيسى عليه سلام په انجيل کې د محمد صلى الله عليه وسلم د امت فضائل لوستي وو لکه څنګه چې الله تعالى فرمايي: (مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاء عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاء بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلاً مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ذَلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَى عَلَى سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا) (الفتح:٢٩) .
ژباړه: محمد دالله رسول دی . او هغه کسان چې له ده سره دي د کافرانو په مقابل کې سخت او په خپلو کې خواخوږي دي، دوی به تل رکوع کوونکي او سجده کوونکي وينې او دوی د الله فضل او خوښي غواړي . د دوی نښانې د دوی په

مخونو کې د سجدې له کبله (ښکاره) دي دا د دوی صفت په تورات کې دی او (دا) د دوی صفت په انجیل کې، د دوی بیلګه داسې ورکړ شوی ده لکه کښت چې لومړی تیغ را وټوکوي بیا هغې ته ځواک او وده ورکړي او بیا کلک او پر خپل ډډ باندې ټینګ شي (تر دې حده پورې چې) بزګر (د خپلې ودې له کبله) په تعجب کې اچوي، څو چې کافران د هغوی پر ځواکمنۍ او سمسورتیا له قهره وسوځي، د دغې ډلې خلک چې ایمان یې راوړی دی او ښې کړنې یې کړی دي الله د دوی سره د بخښنې او سترې بدلې ژمنه کړې ده .

نو ځکه حضرت عیسی علیه السلام د الله تعالی په دربار کې دعا وکړه چې ما دمحمد صلی الله علیه وسلم په امت کې حساب کړه، مهربانه الله تعالی دده دعا قبوله کړه، او هغه یې دې ته انتخاب کړ چې په آخر زمان کې د محمدي صلی الله علیه وسلم ددین د قیام او نصرت د پاره ځمکې ته ښکته شي ددین نصرت وکړي او د اسلام د دوښمنان پر وړاندې مبارزه وکړي .

**دریم:** د حضرت عیسی علیه السلام د نزول بله وجه دا ده چې د هغه اجل نږدې شي او هغه په ځمکه کې دفن شي ځکه داسې باید ونشي چې د خاورو مخلوق د خاورو د باندې بل چیرته مړ شي، پس د هغه نزول د دجال له وتلو وروسته دی تر څو هغه هلاک کړي او وروسته به وفات شي.

**څلورم:** د عیسی علیه السلام د نزول خاصوالی ددې د پاره دی چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمايي: «زه تر ټولو خلکو عیسی ته نږدې یم زما او د هغه تر مینځ هیڅ کوم بل پیغمبر وجود نه لري » (روا البخاري).

عیسی علیه سلام زیری ورکړی وو چې زما وروسته به بل پیغمبر مبعوث شي چې نوم به یې

احمد وي او خلک يې په هغه باندې تصديق او ايمان ته دعوت کړي وو لکه چې الله جل جلاله فرمايي: [وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ] (صف: ۶).

ژباړ: او زه زيری ورکونکی په هغه پيغمبر يم چې وروسته له ما نه به راشي او نوم به يې احمد وي .

حضرت عيسى عليه السلام به د رسول الله صلى الله عليه وسلم په شريعت باندې حکم کوي او هغه د خپل نزول پر مهال له ځانه سره نوی دين نه راوړي بلکې په اسلام به فيصلې کوي ځکه چې د اسلام دين خاتم د اديانو دی او کامل وروستی دين دی چې د قيامت تر ورځې به باقي وي نو هغه وخت به حضرت عيسى عليه السلام يو حاکم وي له حاکمانو د اسلامې امت څخه ځکه چې د محمد صلى الله عليه وسلم نه وروسته به بل پيغمبر نه راځي .

د عيسى عليه السلام دور زمان به هم د حضرت مهدي په شان دامنيت، سلامت خوشحالۍ دور وي بارانونه به زيات اوريږي آب سالي به وي ځمکه به ښه حاصل خيزه وي خلک به مالداره وي، کينه او حسد به نه وي .

حضرت عيسى عليه السلام به اوه کاله يا په بل روايت سره څلويښت کاله ژوند وکړي او وروسته به د فاني نړۍ نه رخصت شي .

**د قيامت علامې :**

د قيامت علامې کومې چې د قيامت په نږيوالي دلالت کوي په دوو برخو ويشل شوی دي وړې علامې او د قيامت لويې علامې او ددې نښانو په اړه مونږ ته جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم خبر راکړی او دا نښانې ټولې په صحيحو احاديثو کې ثابتې شوی دي او دلته په لنډ ډول ځنې نښانې ذکر کوو :

**اشراط الساعة الصغرى (د قیامت وړې نښانې):**

١- د رسول الله صلی الله علیه وسلم بعثت .
٢- د رسول الله صلی الله علیه وسلم رحلت .
٣- د بیت المقدس فتح .
۴- د مال زیاتوالی او د خیرات او صدقاتو کموالی .
۵- د فتنو ښکاره کیدل، د هغه ځخه د هغه فتنو ظهور کوم چې د اسلام په ابتداء کې وو لکه: د عثمان رضی الله عنه شهادت، د جمل او صفین جنگونه، د خوارجو ظهور .
۶- د پیغمبری د مدعیانو ظهور لکه: مسیلمة الکذاب، الأسود العنسی او نور .
٧- په حجاز کې د اور ښکاره کیدل: علماء کرام وایي: دا اور په ۶۵۴ هجری کې مینځته راغلی وو او یو عظیم اور وو .
٨- د امانتونو ضایع، هغه دا چې د خلکو امور به نا اهلو کسانو ته وسپارل شي چې هغوی به د خپل رعیت د امانت او مسئولیت ځخه غافله او بې خبره او ضایع کونکي وي .
٩- د علم کموالی او د جهل او ناپوهی ښکاره کیدل، د علم کموالی به د علماء په قبض روح سره مینځته راشي .
١٠- د زنا خپریدل :
١١- د سود خپریدل .
١٢- د ساز او موسیقی خپریدل .
١٣- د شرابخوری زیاتېدل .
١۴- وینځه به خپل مالک زیږوي، لکه په صحیحین کې یې چې بیان شوی دی، په دې حدیث کې د علماؤ مختلف اقوال دي چې یو قول دا دی چې د مور او پلار نافرمانی به زیاتې شي اولاد به د مور او پلار سره داسې سلوک کوي لکه هغوی یې چې غلامان وي .
١۵- د ناحقه قتلونو زیاتېدل .

۱۶- د مسخې او خسف (غرقيدل او د شکل او صورت بدلېدلو) ښکاره کيدل .
۱۷- د لوڅوء نيمه لوڅو او بې حجابو ښځو ښکاره کيدل .
۱۸- د زلزلو زياتېدل .
۱۹- د مؤمن د خوب رښتيا کيدل .
۲۰- د درواغو ګواهي او شهادت زياتيدل او د حق پټول .
۲۱- د ښځو زياتېدل .
۲۲- د کوچيانو ځايي کيدل (په آبادو ساحو کې ژوند اختيارول) .
۲۳- د حيواناتو او جماداتو ګويا کيدل .
۲۴- د قسطنطينه فتح کيدل .
۲۵- د روميانو زيادت او د مسلمانانو پر وړاندې جنګېدل .
۲۶- د فرات څخه د سرو زرو د غره ښکاره کيدل علماء کرام وايي: د سرو زرو څخه مطلب نفت او پطرول دي چې د سرو زرو په څير به با اهميته وي او د زرو په شان به له کان څخه ايستل کيږي او په دې باندې به زيات جنګونه وشي .

**أشراط القيامة الكبرى (د قيامت لويي نښانې):**

د قيامت لويې نښانې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حديث شريف کې کوم چې حذيفه بن أسد رضى الله عنه روايت کړی دی لس ښودل شوې دي چې په لاندې ډول دي :

۱- د دجال ښکاره کيدل .
۲- د عيسى عليه السلام نزول .
۳- د ياجوج او ماجوج ښکاره کېدل .
۴- د مغرب له طرف څخه د لمر راختل .
۵- د دابة (يو قسم ځاروي) پيدا کېدل .
۶- په مغرب کې خسف.
۷- په مشرق کې خسف.

٨- په جزيرة العرب کې خسف.
٩- د دود پيدا کيدل .
١٠- د اور پيدا کيدل چې خلک به د محشر طرف سوق کوي .
(کتاب اشراط الساعه للشيخ يوسف الوابل).
و الله سبحانه وتعالى اعلم

# شپږم فصل
# صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین

صحابي هغه چا ته وايي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره يې ليدل او ملاقات شوي وي په هغه يې ايمان راوړی وي او دايمان په حالت کې وفات شوی وي .
د صحابه کرامو په باره کې زمونږ عقيده داده چې ټول صحابه کرام عادلان، متقيان وو . مونږ د ټولو صحابه کرامو احترام کوو او دهغو سره مينه لرو .
د صحابه کرامو سره مينه د ايمان او دين نښه او د هغوی سره بغض او دشمني د بې دينی نښه ده ځکه الله تعالی له دوی څخه راضی او خوښ دی .
[وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنْصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَداً ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ] (التوبة:١٠٠).
ژباړه: او هغه وړاندني اولني له مهاجرينو نه او له انصارو نه او (نور) هغه کسان چې متابعت کړی دی د دوی (سابقانو) په احسان او نيکۍ سره الله له دوی نه راضی دی او راضي شوی دي دوی له الله نه او الله تيار کړي دي دوی ته جنتونه چې بهيږي لاندې د هغه ويالې او دوی به هميشه په هغه کې وي او دا (رضا او نعمت) بری دی ډير لوی .
د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وروسته په خلکو کې افضل او بهتره ابوبکر صديق رضی الله عنه دی بيا عمر فاروق رضی الله عنه بيا عثمان رضی الله عنه او بيا علي رضی الله عنه دی .

وَ أفضل النَّاس بعدَ رسولِ اللهِ صلى اللهُ تعالى عليهِ وسلمَ: أبو بكرٍ الصديقُ رضيَ اللهُ عنهُ، ثم عمرُ بنُ الخطابِ ثمَّ عثمانُ بنُ عفانَ ثم عليُّ بنُ أبي طالبٍ، رضوانُ اللهِ تعالى عليهِم أجمعين (فقه اكبر/ابی حنیفه).

**کرامت**

کرامت یوخارق العاده یا د انسان له عاداتو خارج کار دی چې د یو پرهیزګاره شخص چې په قرآن او سنتو پوره برابر وي صادر شي.

کرامت د ولي په اختیار کې نه دي او نه داسې دعوه کولای شي چې زه داسې خارق العاده کار کولای شم (النبراس شرح العقاید ص ٥٥).

او که څوک ظاهراً ځان تقوی داره بولې ولې په اصل کې یو فاسق او فاجر وي کوم د عادت خلاف کار ورڅخه خارج شي نو هغه ته کرامت نشو ویلاې بلکي استدراج، جوګ او طلسم به وي.

شرح فقه اکبر لیکي:

د انبیاؤ علیه السلام معجزات او د اولیاء کرامات حق دي په قرآن او سنتو ثابت دي، مخالفت کوونکي یې یوازې معتزله او اهل بدعت دي او شیعه چې کوم دي هغوی کرامت یوازې د دوی د امامانو لپاره خاص ګڼې او بس.

کرامت یو خارق العاده کار دی چې د الله سبحانه وتعالی په حکم د نیک بنده څخه د هغه د عزت او کرامت په خاطر صادریږي.

لکه په قرآنکریم کې چې د بې بې مریم کرامت ته داسې اشاره شوې ده:

[وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِندَهَا رِزْقاً قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّى لَكِ هَـذَا قَالَتْ هُوَ مِنْ عِندِ اللّهِ إنَّ اللّهَ يَرْزُقُ مَن يَشَاء بِغَيْرِ حِسَابٍ] (آل عمران: ٣٧).

ژباړه: او زكريا پالنه وكړه. كله چې زكريا د مريم خونې ته ورغى نو خوراک به يې ورسره مينده كړ ورته ويې ويل: اى مريم! دا خوراک له كومه شو؟ مريم وويل: دا د الله له لورې دى بې شكه چې د الله پاک چا ته خوښه شي نو بې حسابه رزق وركوي.

همدارنګه د حضرت عمر فاروق رضى الله عنه څخه روايت نقل شوى دى چې هغه د منبر څخه د خپل ليږل شوې فوځ مشر ته نارې كړې: يا سارية الجبل الجبل.

د ليږل شوي فوځ مشر ساريه ته يې حكم وكړ چې غره ته پورته شي ځكه چې د غره د شاه څخه دوښمن پرې را روان وو.

شرح فقه اكبر / ملا علي قاري ص- ٢٣٧).

همدارنګه قصه د دريو كسانو كوم چې په غار كې بند وو او په خپلو نيكو اعمالو يې توسل وكړ او الله پخپل فضل نجات وركړ دا قصه وروسته را روانه ده.

**ولي څوک دى ؟**

اولياء د ولي جمع ده او ولي دوست ته وايي څوک چې د الله تعالى (جل جلاله) او د هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مينه لري د هغه په اوامرو عمل كوي الله تعالى هم هغه دوست ګڼې.

د اهل سنت و الجماعت څلورو واړو مذاهبو دا عقيده ده چې ولى هر هغه مؤمن او مسلمان دى چې تقوى ولري، د الله تعالى د حدودو حفاظت وكړي او درجه يې په تقوى او نيک عمل پورې اړه لري.

لقوله تعالى: (أَلا إِنَّ أَوْلِيَاء اللّهِ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ، الَّذِينَ آمَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ، لَهُمُ الْبُشْرَى فِي الْحَياةِ الدُّنْيَا وَفِي

الآخِرَةِ، لاَ تَبْدِيلَ لِكَلِمَاتِ اللهِ ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ) يونس/62-64) .

ژباړه: واورئ! بې شکه چې څوک د الله دوستان وي پر هغوی کومه وېره او خواشيني نشته، هغه کسان چې ايمان يې راوړی او تقوی يې غوره کړې ده .

د دمشق عالم ابن قيم رحمه الله وايي: څوک چې د الله او د هغه د رسول الله قدر کوي د ده به هم د الله تعالی په دربار کې قدر وي د الله (جل جلاله) او د هغه د پيغمبر صلی الله عليه وسلم قدر دادی چې د هغه د اوامرو ساتنه او قدر وشي .

څوک چې د الله تعالی د اوامرو قدر نه ساتي هغه اصلاً د الله (جل جلاله) قدر نه ساتي او الله تعالی هم د هغه قدر نه کوي .

نو که څوک په دنيا او آخرت خپل قدر او عزت غواړي تقوی دې اختيار کړي .

**ايمان او کبيره ګناهونه**

زمونږ عقيده او مذهب دادی چې د کبيره ګناه په ارتکاب سره تر هغه پورې سړی نه کافر کيږي څو هغه حلال ونه ګڼې او يا هم د شريعت د کوم حکم څخه انکار ونه کړي .

کوم کس چې ګناه کوي خو هغه حلاله نه ګڼې او له حرمت څخه يې منکر نه وي فاسق ورته ويلای شو خو هغه ته کافر نشو ويلای ځکه د کبيره ګناه په ارتکاب سړی نه کافر کيږي .

ولا نكفرُ مسلمًا بذنبٍ منَ الذنوبِ وإنْ كانتْ كبيرةً إذا لم يستحِلَّهَا، ولا نزيلُ عنهُ اسمَ الإيمانِ ونسمِّيهِ مؤمنًا حقيقةً، ويجوزُ أنْ يكونَ مؤمنًا فاسقًا غيرَ كافرٍ (فقه اکبر/ابی حنيفه رحمه الله) .

په دغه عقيده کې خوارج له اهل سنت و جماعت څخه بيل شوی دي هغوی د کبيره ګناه کوونکي ته کافر وايي .

**دخوارجو سره د امام ابو حنيفه رحمه الله مناظره :**

کله چې خوارج پر کوفه مسلط شول، امام ابو حنيفه ته يې وويل: اى شيخ! له کفر څخه توبه وباسه، ابو حنيفه وويل: ما د هر ډول کفر څخه الله تعالى ته توبه کړې ده . بيا يې امام خوشى کړ، کله چې هغوى لاړل ځينو وويل: دتوبې څخه دهغه مطلب ستاسو عقائد دي، بيا يې هغه را وغوښتو او د خوارجو امام هغه ته وويل: اى شيخ! د کفر څخه توبه کولو مطلب دې زمونږ عقائد دي؟ ابو حنيفه وويل: آيا ته د ګمان له مخې دا وايي او که د يقين له مخې؟ هغه وويل: د ګمان له مخې .

ابو حنيفه وويل: الله تعالى فرمايي :[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ] (حجرات: ١٢).

ژباړه: اى مؤمنانو! له ډيرو ګمانونو څخه ځانونه وژغورى يقيناً چې ځينې ګمان ګناه ده .

کله چې خوارج خبر شول چې ابوحنيفه مرتکب د ګناه کافر نه بولي، يو کس يې په نوم د وفدى هغه ته د مناظرې لپاره ورولېږه .

وفدى ابو حنيفه رحمه الله ته وويل: د دوازې په مخه کې دوې جنازې دي يو جنازه د داسې کس ده چې ډير شراب به يې څښل او بله جنازه د زنا کارې ښځې ده چې کله يې تولد کولو ځان وژنه يې وکړه، ابوحنيفه هغه ته وويل: دا دوه کسان له کوم دين څخه دي؟ له يهوديت؟ ځواب يې ورکړ نه . له مسيحيت؟ ويې ويل نه، له مجوسيت؟ ويې ويل نه، ابو حنيفه وويل: نو هغوى د کوم دين څخه دي؟ هغه وويل: د هغه دين څخه دي چې په (لا اله الا الله محمد رسول الله) عقيده لري، ابوحنيفه وويل: کلمه د ايمان څومره حصه ده؟ آيا دريمه، څلورمه حصه که

پـنځمه؟ ويـې ويـل: ايـمـان دريـمـه، څـلـورمـه او پـنځمه نـلـري.

امـام ابـو حـنـيـفـه رحـمـه الله وويـل: نـو کـلـمـه د ايـمـان څـومـره بـرخـه ده؟ هـغـه وويـل: ټـول ايـمـان دى.

امـام ابـوحـنـيـفـه ورتـه وويـل: نـو ولـى زمـا څـخـه د هـغـو دوو کـسـانـو پـه بـاب پـوښـتـنـه کـوې چې تـه خـپـلـه اعـتـراف کـوې چې هـغـوى مـؤمـنـان دي.

ويـې ويـل: دا پـرېـږده آيـا هـغـوى جـنـتـيـان دي او کـه دوزخـيـان؟ ابـوحـنـيـفـه وويـل: اوس دې چې انـکـار وکـړ نـو زه د هـغـو پـه حق هـغـه څـه وايـم څـه چې ابـراهـيـم عـلـيـه الـسلام د خـپـل قـوم پـه بـاره کې چې ګـنـاه او جـرم يـې تـر دغـو دوو کـسـانـو سـتـر او لـوى وو ويـلـي دي چې:

[رَبِّ إِنَّـهُـنَّ أَضْلَـلْـنَ كَـثِـيـرًا مِـنَ الـنَّـاسِ فَـمَـنْ تَـبِـعَـنِـي فَـإِنَّـهُ مِـنِّـي وَمَـنْ عَـصَـانِـي فَـإِنَّـكَ غَـفُـورٌ رَحِـيـمٌ] (إبـراهـيـم: ٣۶).

ژبـاړه: اى زمـا ربـه! يـقـيـنـاً دغـو (بـتـانـو) لـغـزولـي او ګـمـراه کـړي دي ډېـر لـه خـلـکـو نـو هـر چـا چې مـتـابـعـت کـړى دى زمـا نـو يـقـيـنـاً هـغـه لـه مـا (زمـا د مـلـت) څـخـه دي او هـر چـا چې نـافـرمـانـي کـړې ده زمـا نـو يـقـيـنـاً چې تـه ښه بـښـونـکـى او ډېـر مـهـربـان يـې.

او د دغـو دوو کـسـانـو پـه بـاره کې هـغـه څـه وايـم څـه چې عـيـسى عـلـيـه الـسلام د خـپـل قـوم پـه هـلـکـه چې د دغـو دوو کـسـانـو څـخـه يـې ګـنـاه لـويـه وه ويـلـي وو:

[إِنْ تُـعَـذِّبْـهُـمْ فَـإِنَّـهُـمْ عِـبَـادُكَ وَإِنْ تَـغْـفِـرْ لَـهُـمْ فَـإِنَّـكَ أَنْـتَ الْـعَـزِيـزُ الْـحَـكِـيـمُ] **(المائده: ۱۱۸)**.

ژبـاړه: (اى الله!) کـه عـذاب ورکـړى دوى تـه، نـو يـقـيـنـاً دوى سـتـا بـنـدګـان دي او کـه بـښـنـه وکـړې دوى تـه نـو يـقـيـنـاً تـه هم دا تـه يـې ښه غـالـب او حـکـمـت والـه.

ابوحنيفه رحمه الله وايي: اسلحه يې وغورځوله او ويې ويل: په كوم دين چې زه وم له هغه څخه بېزاره يم، او په هغه دين چې ته يې د الله تعالى بنده ګي كوم، تسليم شوم، الله تعالى پر تا فضل كړى، تا ته يې علم او حكمت دركړى دى . (مناقب أبى حنيفه، للمكى (١٠٨، ١٠٩).

**د ايمان زيادت او نقصان**

د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد ايمان زيادت او نقص نه مني دځمكې او آسمان د اهل ايمان يو شان ثابت دى ځكه د نقصان تصور نه كيږي مګر په زيادت د كفر سره او د زيادت تصور نه كيږي مګر د كفر په نقصان سره نو څنګه به جايز وي چې يو كس په يو وخت كې مؤمن او كافر شي (فقه اكبر -اصول الدين عند ابى حنيفه ص ٣٨٩) .

لقوله سبحانه وتعالى: [شَرَعَ لَكُمْ مِنَ الدِّينِ مَا وَصَّى بِهِ نُوحاً وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ وَلا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ] (سورة الشورى) .

ژباړه :او تاسې ته يې هغه دين دركړى دى چې نوح ته يې پرې حكم كړى وو، (اى محمده!) اوس مې تاته وحى كړى ده او ابراهيم، موسى او عيسى ته مې هم پرې امر كړى ؤ . او هغه دا چې دين سم ودروئ او اختلاف پكې مه كوئ .

يعنې د مؤمن به شيان له مخې ايمان زيات او كم نشي كېداى بلكې د يقين له مخې زيادت او كموالى كوي .

و جاء في الفقه الأكبر قول الإمام أبي حنيفة: "وإيمان أهل السماء والأرض لا يزيد ولا ينقص من جهة المؤمَن به، ويزيد وينقص من جهة اليقين والتصديق، والمؤمنون مستوون في الإيمان والتوحيد، ومتفاضلون في الأعمال (فقه اكبر – اصول الدين ١/٣٩٠)

لكه د ابراهيم عليه السلام قصه :

[وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِـي الْمَوْتَى قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن قَالَ بَلَى وَلَـكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلَى كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا وَاعْلَمْ أَنَّ اللّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ] (البقره: ۲۶۰).

ژباړه: او (اى محمده!) هغه وخت ياد كړه چې ابراهيم وويل: اى زما ربه ماته وښيه چې تاسې څنګه مړي ژوندي كوئ؟ الله پاك وفرمايل: آيا ستا لا باور نشته؟ ابراهيم وويل: هو باور مې پوره شته خو پوښتنه مې ددې لپاره ده چې زړه مې مطمئن شي . الله پاك وفرمايل څلور مرغان ونيسه ځان ته يې را نږدې كړه بيا د جلا جلا غرونو په څوكو د مرغانو جلا، جلا برخې كېده . بيا ټول (بيل، بيل) راوبله تاته به ټول مرغان په منډه راشي او پوه شه چې الله پاك په هر څه برلاسى زوره ور او د پوره حكمت والا دى .

د دغه آيت شريف [وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَاناً وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ] (سورة الأنفال :الآية2) .

ابن جوزي رحمه الله پخپل تفسير كې ليكي :

وفي قوله: {زادتهم إيماناً} ثلاثة أقوال.

أحدها: تصديقاً، قاله ابن عباس. والمعنى: أنهم كلما جاءهم شيء عن الله آمنوا به فيزدادوا إيماناً بزيادة الآيات.

والثاني: يقيناً، قاله الضحاك.

والثالث: خشية الله، قاله الربيع بن أنس.

يعنې: په [زادتهم ايماناً] كې درى اقوال دي :

اول: د ايمان د زيادت څخه مقصد تصديق دى چې دا قول د ابن عباس دى، يعنې كله چې د الله

تعالى د جانبه آيتونه نازليږي د دوی ايمان زياتيږي .
دوهم: يقين چې دا قول د ضحاک دی .
دريم: د الله تعالى څخه وېره چې دا قول د ربيعه بن انس دی .
تفسير سيوطي ليکي :
وأخرج ابن جرير وابن أبي حاتم عن ابن عباس في قوله: {زادتهم إيماناً} قال: تصديقاً.
وأخرج ابن جرير وابن أبي حاتم وأبو الشيخ عن الربيع بن أنس في قوله: {زادتهم إيماناً} قال: زادتهم خشية.
وأخرج ابن أبي حاتم وأبو الشيخ عن مجاهد في قوله: {زادتهم إيماناً} قال: الإيمان يزيد وينقص، وهو قول وعمل.
وأخرج أبو الشيخ عن سفيان بن عيينة قال: نطق القرآن بزيادة الإيمان ونقصانه قوله: {زادتهم إيماناً} فهذه زيادة الأيمان، وإذا غفلنا ونسينا وضيعنا فذلك نقصانه.

**شرح فقه اکبر ليکي :**

د ايمان د زيادت او نقصان څخه د امام ابوحنيفه رحمه الله مقصد دادی چې ايمان د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کې زياتېدو ځکه په يو فرض پسې بل فرض نازلېدل او دا قول په تأويل د روايت د ابن عباس رضى الله عنهما دی لکه څنګه چې په الکشاف له هغه نه روايت شوی: په رسول الله صلى الله عليه وسلم لومړی توحيد نازل شو، کله مو چې د الله په توحيد ايمان راوړ، د لمونځ، زکات، بيا حج او بيا جهاد حکم نازل شو نو زياد مو شو ايمان سره له ايمانه .

د ابي حنيفه د خبرې حاصل دادى چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د عصر وروسته د ايمان زيادت او نقصان تصور نشي كيداى او دا زيادت د وحى د نزول پر مهال وو (شرح فقه اكبر / القاري مكي ص ٣٨٣)،

و الله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب

**شرح فقه اكبر زياتوي :**

او ځينې محققين وايي: لكه قاضى عز الدين: تصديق زيادت او نقصان نه قبلوي بلكي قوت او ضعف قبلوي، يعنې تفاوت او فرق د ايمان په قوت او ضعف كې دى، د امت تصديق داسې نه دى لكه د رسول الله صلى الله عليه وسلم تصديق، لكه ابراهيم عليه السلام چې وايي [وَلَكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي] (البقرة :٢٦٠) .

كوم چې اختلاف دى نو هغه په تفاوت د ايمان كې دى چې هغه په سبب د كميت (ضعف او قوت) او هر چې زيادت او نقصان دى هغه اكثراً د عدد لپاره استعماليږي او دا مذهب د امام الرازي او نورو دى او دغه اختلاف لفظي دى كوم چې د ايمان په تفسير كې دى (شرح فقه اكبر / قاري مكي ص ٣٨٥) .

همدارنګه قاري مكي په شرح فقه اكبر كې ليكي :

پوه شه چې دا مشهور حديث « ان الايمان قول وعمل، ويزيد و ينقص، والايمان لا يزيد و لا ينقص »

غير صحيح دى فيروزآبادي په صراط المسقيم كې او امام ذهبي په ميزان الاعتدال كې غير صحيح بللى دى او دا حديث چې ابن ماجه روايت كړي « لايمان عقد بالقلب، و اقرار باللسان، وعمل بالأركان » ابن جوزي د موضوعي حديث حكم وربانديې كړى دى .

او همدارنګه دا حدیث چې ابو لیث سمرقندي روایت کړی چې « جاء وفد ثقیف الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فقالوا: یا رسول الله الایمان یزید وینقص؟ فقال علیه الصلاة والسلام: لا ..»
شارح عقیده الصحاویه وایي د خپل شیخ عمادالدین بن کثیر څخه مې ددې حدیث په اړه پوښتنه وکړه، ځواب یې را کړ چې ددې حدیث اسناد د ابی اللیث نه تر ابی مطیع پورې مجهول دي، او دغه حدیث احمد، بخاري، ابوداود، نسائي، دارقطني ابن حبان او نورو رحمهم الله تعالی ضعیف بللی دی او دوکتور محمد بن عبدارحمن الخمیش په اصول الدین عند ابی حنیفه کې بې اصله بللی دی.
(شرح فقه اکبر / القاري مکي ص ٣٨٧، أصول الدين عند الإمام أبي حنيفة ١/٤١٣).
مګر د جمهورو (امام مالک، امام شافعي او امام احمد رحمه الله علیهم) په نزد په ایمان کې زیادت او نقصان راځي .
لقوله سبحانه وتعالی: [إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَاناً وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ] (سورة الأنفال :الآية2) .
ژباړه: یقیناً مؤمنان هغه کسان دي چې کله الله جل جلا له یاد کړ شي د دوی زړونه له (الله) څخه وېرېږي او کله چې د الله جل جلا له آیتونه پرې ولوستل شي نو د دوی ایمان لا پیاوړی کوي او دوی پر خپل رب توکل کوي.
د امام مالک رحمه الله څخه یو روایت داسې هم نقل شوی دی چې ایمان زیادت کوي لکن د نقصان په اړه یې توقف کړی دی، ځکه د نقصان دلیل په کتاب الله کې نشته .
عن الإمام مالك رحمه الله تعالى في مسألة زيادة الإيمان ونقصانه روايتان، قال في

إحداهما: إن الإيمان يزيد أما النقصان فتوقف فيه وطلب من السائل أن يكف عن السؤال عنه، لأنه لم يجد عليه دليلا من كتاب الله، قال ابن عبدالبر: (وقد روى ابن القاسم عن مالك أن الإيمان يزيد، ووقف في نقصانه (التهميد ٢٥٢/٩) .
و الله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب

**د ایمان د ضعف (کمزوری) او د زړه د کلکوالي اسباب او علائم**

د ایمان ضعف او د زړه کلکوالی زیات علتونه لري چې ځنې یې په لاندې ډول بیانیږي :

**۱ـ زیات وخت د ایماني ماحول نه لریوالی :**

د ایماني ماحول څخه لریوالی د ایمان د کمزورۍ سبب ګرځي الله جل جلا له فرمايي :
[ أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَن تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ] (حديد: ۱۶)
«آيا مؤمنانو ته هغه وخت نه دی را رسيدلی چې د الله ذکر او نازل شوي حق ته يې زړونه نرم شي؟ او د هغو کسانو په شان نه شي چې وړاندې کتاب ورکړ شوی وو خو چې اوږد وخت پرې تير شو نو زړونه يې کلک . او ډير له دوی څخه فاسقان دي ».

دا آيت شريف په ښه شان دې مطلب ته اشاره کوي چې د ايماني ماحول څخه زيات وخت لريوالی په زړه کې د ايمان د ضعف سبب ګرځي، د مثال په ډول يو کس چې زيات وخت له خپلو ديني ورونو او ملګرو لرې وي ګواکې د ايماني ماحول څخه چې ده د هغه تر سيورې لاندې ژوند کولو او د هغوی څخه يې د زړه قوت او ايماني نور اخيست لرې دی .

مؤمن يو خاص صفت لري هغه دا چې معمولاً د ځان د مشغولتيا پر ځای د نورو مسلمانانو سره د ناستې او ملګرتيا تابيا لري .

حسن بصری رحمه الله وايي: زمونږ په نزد زمونږ ورونه زمونږ د اهل او کور نه زيات ارزښت او ګټه لري ځکه زمونږ اهل مونږ ته د دنيا ياد کوي مګر زمونږ ورونه مونږ د آخرت طرف ته متوجه کوي .

نو هر کله چې سړی د سفر يا کوم دنيوي مصروفيت يا بل څه وجه زيات وخت د ايماني ماحول څخه لري شي د هغه په زړه کې د همغه شغل محبت ځای نيسي زړه يې کلک او تور ګرځي او د هغه په زړه کې د ايمان نور کمزوری ګرځي، دا حالت معمولاً هغه وخت مينځ ته راځي چې سړی په لرې سفر چيرته تللی وي، يا يې بل ځای ته کوچ کړی وي او يا د دنيا په چارو کې زيات مشغول شي .

**۲- د صالحو او نيک عمله کسانو څخه لرېوالی :**

د نيکو او صالحو کسانو د ملګرتيا په وجه صالح عمل او ايماني قوت لاس ته راتلی شي او د هغوی د عمل، اخلاقو او ښو صفاتو څخه سړی ګټه تر لاسه کولای شي خو که کله سړی له دا ډول نيکو او صالحو خلکو لرې شي په زړه کې د سختی احساس کوي .

صحابه کرامو دجناب رسول الله صلی الله عليه وسلم د وفات وروسته څو حالته احساس کړل چې خپله يې هغوی داسې بيانوي :

(زمونږ زړونه معيوب) هغوی داسې تنهايی او وېرې وپوښل چې بيان يې ناممکن دی، هغوی خپل مربی، معلم او مشر له لاسه ورکړ او هغوی په داسې حالت کې وو لکه (بې چوپانه رمه) په توره او باراني شپه کې .

مګر رسول الله صلی الله علیه وسلم پر خپل ځای داسې ملګري پرېښودل چې هر یوه یې د هغه صلی الله علیه وسلم پر ځای د ځای ناستې غوره لیاقت لرلو . نن هم مسلمانان تر بل هر وخت یو داسې مشر او لارښود ته ضرورت لري چې د تقوی، اخلاقو او عدل نمونه وي تر څو ټول مسلمانان پرې را ټول او نږدې شي .

الله سبحانه وتعالی مؤمنانو ته حکم کوي چې د نیکو او صالحو کسانو سره ملګرتیا غوره کړئ: [یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَکُونُواْ مَعَ الصَّادِقِینَ] (التوبه ۱۱۹)

ژباړه: ای مؤمنان له الله څخه وویرېږئ او له صالحانو خلکو سره ملګري شئ.

**۳- د دیني علومو د زده کړې او مطالعې څخه لرېوالی :**

له نیکمرغه زیات اسلامي کتابونه وجود لري چې د هغه په لوستلو د سړی ایمان قوي او د ایمان ولولې یې په جوش راځي چې ددې ټولو کتابونو په سر کې قران مجید قرار لري هغه کتاب چې پر لوستلو یې د مؤمن ایمان قوي کیږي او پس له هغه څخه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنتو کتابونه او د هغه څخه وروسته د فقهې او احکامو کتابونه او د امت د علماؤ د پند او نصیحت کتابونه دي .

د شرعي کتابونو په زده کړې او مطالعې سره مؤمن د اسلامي شریعت له احکامو خبرېږي، حرام او حلال پېژني، د مؤمن او منافق صفات پیژنې، د نفس، شیطان، مال او د اسلام د دوښمنانو سره د دوستۍ خطرناک عواقب پیژنې، معاملات، د ژوندانو په ټولو چارو کې د اسلامي شریعت آداب او اخلاق پیژنې چې ددې په پیژندلو انسان خپل ځان ته متوجه کیږي او هر وخت د خپل ځان د اصلاح او الله (جل جلا له) د صحي رجوع په فکر کې وي، چې الله (جل جلا له) هم داسې

بنده خوښوي كوم چې غواړي ځان په شرعي مسائلو پوه كړي او په هغه باندې عمل وكړي :
لقوله رسول الله صلى الله عليه وسلم :«مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ، ... »
(البخاري:٣١١٦) .
يعني: چاته چه الله تعالى د خير اراده وكړي نو په دين كښي پوهه ور په برخه كړي .

۴- د ګناه او معصيت په ماحول كې اوسيدل :

دا چې اوس مهال د اكثرو ټولنو او ولسونو ماحول د فتنو او ګناهونو څخه ډک دی هر طرف ته د ګناهونو طوفان روان دی په علني ډول د سود او قمار ګرم بازار، د رشوت او غصب چور، موسيقي او فحشاء، هر لور ته بې شرمه تصويرونه او بې شرمۍ طرف ته دعوت، بې حجابي، د نارينه او ښځو تر مينځ اختلاط او ګډون، غيبت، بهتان او دروغ، د مال د زياتولو سيالی او په هر مجلس كې د دنيا خبرې او بحثونه چې د الله (جل جلا له) هيڅ ياد پكې نه وي، تجارت، قدرت او منزلت، د كفارو او فاسقانو دبدبې د هر مجلس د خبرو رأس ګرځيدلی او د دين په اړه هيڅ بحث او احساس نشته .

دا مو د ټولنې حال دی د كور حال مو تر دې هم بد دی د ښځو لخوا د نارينه د حقونو تر پښو لاندې كول او د نارينه لخوا د ښځو د حقونو تر پښو لاندې كول، د بې شرمه او فاحشو فلمونو او سريالونو كتل، د نامحرمو ښځو او نارينوو تر مينځ اختلاط، د كفر او الحاد تقليدونو د مسلمان كور پر سر اخيسی دی نن ځنې مسلمانې كورنۍ په علني توګه د مشركينو، يهودو او نصاراوو د باطلو عقائدو او عاداتو تقليد كوي او په هغه باندې افتخار كوي .

چې د ټولنې او کورنۍ د فسق او ګناهونو ډک ماحول د ایمان د کمزورۍ سبب ګرځي .

**۵- د دنیا په کارونو کې له حده زیاته مشغولتیا :**

د ایمان د ضعف بل سبب دادی چې انسان ددنیا په چارو کې ځان دومره مشغول کړي چې بیا کار او شغل د ځان د پاره اصلی هدف ګڼې او عبادت د هغه یو فرعي جز ګڼي .

نن اکثره مسلمانان په همدې مرض اخته دي، د مثال په توګه یو کس په کار مشغول دی ددې کوښښ کوي خپل کار تمام کړي خیر که لمونځ آخر هم شي، چې په دې سره یې کار اصلي هدف و ګرځولو او لمونځ یې د هغه فرع و ګڼلو .

بلکي مؤمن باید عبادت اصلي هدف و ګرځوي، مثلاً لمونځ د الله (جل جلا له) د جانبه په ټاکل شویو وختونو کې یو فرضیه ده، ټول کارونه او مشغولتیاوې به د لمانځه تابع ګرځول کیږي، نه دا چې لمونځ د نورو مشغولتیاوو تابع جوړ شي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: د دینار بنده هلاک شو د درهم بنده بدبخته شو (روایت بخاری -۲۷۳۰).

دغه کس دوه تاوانونه وکړل عبادت یې صحي ادا نه کړ او د ځان دپاره یې کارونه سخت کړل ځکه په قدسي حدیث شریف کې راغلی دي: «یقول الله تعالي: یا بني آدم! تفرغ لعبادتي أملأ صدرك غنا وأسد فقرك وإن لم تفعل ملأت صدرك شغلا ولم أسد فقرك» (مسند احمد او ابن ماجه) .

ژباړه: الله تعالی فرمايي: ای د آدم زويه! ځان دې زما د عبادت د پاره فارغ کړه تر څو ستا سینه له بې احتیاجۍ، بې وسی او توان څخه ډکه کړم او فقر محتاجي له تا نه لرې کړم کچیرې داسې ونه کړې، ستا سینه به په

مشغولیتونو ډکه کړم او تا نه به فقر او احتیاج لرې نه کړم .

همدارنګه په حدیث شریف کې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه روایت دی: «من کانت الدنیا همه، فرق الله علیه أمره وجعل فقره بین عینیه ولم یأته من الدنیا إلا ما کتب له، ومن کانت الآخرة نیته جمع له أمره وجعل غناه في قلبه وأتته الدنیا وهي راغمة: (ابن ماجه او سلسلة الصحیحة)

ژباړه: څوک چې د دنیا په خیال او غم کې وي، الله جل جلا له دده کار ده ته تیت کړي او دده په سترګو کې به فقر ځای کړي او دی به بل څه په لاس را نه وړي مګر څه چې ده ته لیکل شوی وي، او د هر چا چې نیت آخرت وي، الله جل جلا له به د ده کار جوړ کړي او د هغه زړه به غني وګرځوي او دنیا به د ده طرف ته راځي).

ښکاره ده چې نن خلک ددنیا په جمع کولو کې څومره چالاک او سرګردانه دي چې هیڅ بس نه لري په هر ډول چې کیږي باید مالداره او شتمن شي .

چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې قول مصداق ګرځي چې فرمایي: الله (جل جلا له) فرمایي: مونږ مال او دارایي د لمونځ او زکات د اداء، او قیام د پاره نازل کړل، که انسان د مال او ثروت څخه یو ډکه دره هم ولري، هغه ددې آرزو او هیله هم لري چې دوهمه هم ولري او که د دوو درو لرونکی وي ددې آرزو لري چې دریمه هم ولري، د انسان خیټه پرته له خاورو په بل څه نه ډکیږي (د انسان حرص او آرزو د مرګ پرته نه ختمیږي) پس الله (جل جلا له) د هر توبه کوونکی توبه قبلوي (روایت احمد :٢١٩/٥، صحیح الجامع :١٧٨١).

۶- د مال، ښځو او اولادونو په محبت کې مشغولتیا :

د مال، ښځو او اولادنو سره تر داسې حده محبت او مشغولتیا چې د الله (جل جلا له) څخه د غفلت سبب جوړ شي او د دیني اوامرو او احکامو د نیمګړتیا سبب شي دا کار هم د ایمان د کمزوری سبب ګرځي .

لقوله سبحانه وتعالی :[وَاعْلَمُواْ أَنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلاَدُكُمْ فِتْنَةٌ] (انفال: ۲۸)

یعنې: او پوه شئ چې مالونه او اولادونه مو آزمیښت دی (د تاسې د هلاکت سبب ګرځي کچېرې د هغه محبت ته د الله او د هغه د رسول پر محبت باندې ترجیح ورکړئ) .

همدارنګه الله (جل جلا له) فرمایي :

[زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاء وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ذَلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاللّهُ عِندَهُ حُسْنُ الْمَآبِ] (آل عمران: ۱۴)

ژباړه: خلکو ته دشهوتونو مینه ښایسته شوی ده چې له ښځو، ځامنو، د سرو او سپینو زرو له ټولول شوو خزانو، په نښه کړ شویو آسونو، څارویو او کښتونو څخه عبارت دي، دا څیزونه د دنیوي ژوند ګټه ده او د ورتګ ښه ځای د الله تعالی سره شته .

ددې آیت شریف مفهوم دادی چې که انسان د الله د محبت پر ځای دښځو، اولاد، مالونو او کښتونو محبت ته ترجیح ورکړي او په هغه کې داسې مشغول شي چې د الله (جل جلا له) څخه د غفلت سبب شي نو دا محبت او مشغولتیا د بنده د هلاکت سبب جوړیږي .

او که دښځو او اولاد سره محبت د شریعت په اساس وي چې د الله (جل جلا له) د اطاعت څخه سړی غافل نه کړي ښه او غوره کار دی .

ډیر خلک د ښځو او اولاد سره د زیات محبت په وجه د الله تعالی په اطاعت کې پاتې راغلي او په ګناه کې اخته شوي دي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: اولاد د غم، ویرې، جهل او بخل سبب دی (طبرانی ۲۴/۲۴۱، صحیح الجامع: ۱۹۹۰).

**د حدیث تشریح:** دا چې اولاد د بخل سبب کیږي دادی چې هر کله انسان د الله تعالی په لار کې د انفاق او صدقې قصد وکړي نو دغه وخت شیطان انسان ته خپل اولاد ور یادوي نو انسان له ځانه سره وایي له دې څخه مې خپل اولاد ښه حق دار دی چې باید هغوی ته مال او دارایي پرېږدم نو انسان ددې ډول وسوسې څخه د الله تعالی په لار کې د انفاق څخه مخ اړوي بخل اختیاروي.

او همدارنګه اولاد د ویرې سبب دی، کله چې انسان د انفاق فی سبیل الله قصد وکړي نو خپل اولاد یې ور په یاد شي چې هغوی مال او ثروت ته ضرورت لري داسې نه چې د لوږې سره مخ شي، یا که د جهاد قصد وکړي شیطان هغه ته وسوسې ور اچوي چې ته به ممکن په جهاد کې شهید شي او ستا اولادونه به یتیمان او بې سرپرسته پاتې شي نو دا هغه څه دي چې انسان د هغه په وجه د زکات، صدقې او جهاد څخه مخ اړوي.

اولاد د جهل او ناپوهی سبب دی، پلار د خپل اهل عیال د ژوند د ضروریاتو په کوښښ کولو کې دعلم د زده کړې، مطالعې او دیني مجلس څخه پاتې کیږي.

اولاد د غم او پریشانی سبب دی، کله چې اولادونه مریضان شي مور او پلار په غم اخته کوي یا داسې څه غواړي چې د مور او پلار په وس پوره نه وي مور او پلار په غم اخته کوي

يا كله چې لوى شي او بيا د مور او پلار نا فرماني وكړي مور او پلار په غم اخته كوي .
دې خبرې ته مو پام وي چې د خپل اهل عيال نفقه او تربيه يو ستر مسئوليت دى خو بايد د اولاد پالنه او تربيت سړى دومره مشغول نه كړي چې دګناه سبب شي او دانسان بايد دې ته پام وي چې دا هر څه د الله تعالى د جانبه آزميښت دى، او انسان به هميشه كوښښ كوي چې د اهل عيال د ژوند او ضروورياتو پوره كولو په لار كې د اطاعت د ترک او ګناه سبب نه شي .
او بل د مال فتنه ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم يې په اړه داسې فرمايلي دي: د هر امت د پاره فتنه وه (د آزميښت اسباب وو) او زما د امت د پاره فتنه (د آزميښت اسباب) مال دى .
رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: كه دوه وږي ليوان پر رمه كډ شي دومره زيان او خرابي نه لري لكه پر مال باندې حرص كول چې د دين د پاره زيان لري . (ترمذى :٢٣٧٦)، صحيح الجامع :٥٦٢٠).
٧– اوږدې هيلې او اميدونه :
اوږدې هيلې او اميدونه چې زه به په دنيا كې ډير وخت ژوندى وم او د مرګ څخه غفلت كول هم دايمان دكمزورى سبب دى، الله جل جلاله فرمايي: [ذَرْهُمْ يَأْكُلُواْ وَيَتَمَتَّعُواْ وَيُلْهِهِمُ الأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ] (حجر: ٣).
ژباړه: پرېږده هغوى چې خوراک وكړي ګټې تر لاسه او اوږدې هيلې يې ښه مصروف وساتي ډير ژر به پوه شي .
حضرت على رضى الله عنه وايي: هغه شى چې زه ستاسو په باره كې ور څخه ويره لرم د هوا او هوس پيروي او اوږدې هيلې او آرزوګانې دي چې

انسان له حق څخه غافله او آخرت یې له یاد څخه وځي- فتح الباری :(۱۱/۲۳۶).
په یوه روایت کې راځي: څلور شیان د انسان د بدبختی علائم دي: د سترګو وچوالی (هغه سترګې چې د الله د ویرې او د آخرت په یاد کې هیڅ اوښکې نه تویوي)، د زړه سختوالی، اوږدې هیلې او آرزوګانې، د مال دولت حرص .
همدارنګه اوږدې هیلې او آرزوګانې د ښو کارونو د تر سره کولو د ځنډ سبب کیږي او انسان د توبې په ایستلو کې غافله کوي د مرګ او آخرت څخه یې غافله کوي .
**۸- زیات خوب، زیات خوراک اوڅښاک، زیاته جماع او زیاتې خبرې،** د زړه د سختوالی او دایمان د کمزورۍ سبب کیږي، ډیر خوراک انسان درنوي د انسان د بدن دسستی سبب کیږي چې بیا عبادت ورته سخت او ګران تمامیږي، په دې اړه علماء وایي: څوک چې زیات خوراک کوي نو زیات څښاک هم کوي د زیات خوراک او څښاک نتیجه زیات خوب کول دي چې بلاخره د عبادت څخه محروم ګرځي .
زیاتې خبرې زړه کلکوي او زړه وژني، زیات مجلسونه سړی د خپل ځان د فکر او محاسبې څخه غافله کوي، زیات خندل په زړه کې د ایمان روښنایي کمزورې کوي او زړه وژني . رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: ډیر مه خاندئ چې ډیر خندل زړه وژني (ابن ماجه :۴۱۹۳، صحیح الجامع :۷۴۳۵) .
**۹- په عباداتو کې سستي کول د ایمان د کمزورۍ سبب ګرځي .**
په عباداتو کې سستي کول د انسان د هلاکت سبب ګرځې لکه جومات ته نه تلل په کور کې لمونځ کول، لمونځ په خپل وخت نه ادا کول بلکې د هغه ځنډول، په تیزۍ سره لمونځ کول، د قرآنکریم د تلاوت او ذکر ترک کول او نور ....

د ايمان د ضعف د اسبابو پای

## په موزو باندې مسحه کول

زمونږ په نزد په موزو باندې مسحه، په رمضان کې د تراويح لمونځ کول سنت مؤکد دي، او په هر متقي او فاجر پسې اقتدا کول صحي دي .

والمسحُ على الخفينِ سنةٌ، والتراويحُ في شهرِ رمضانَ سنةٌ. والصلاةُ خَلفَ كلِّ بَرٍ وفاجِرٍ من المؤمنينَ جائزةٌ (فقه اكبر/ ابوحنيفه رحمه الله) .

د موزو د مسحې مسئله ځکه د عقائدو په کتابونو کې ذکر شوی ده چې دا د اهل سنت و الجماعت عملي نښه ده او په دې سره يې له نورو ډلو فرق کيږي او اهل سنت والجماعت په دې باندې ايمان لري .

دوکتور سهل العتبي په عقيده الاکادمية الاسلامي کې ليکي :

(ونرى المسح على الخفين، والصلاة خلف الأمراء، أبراراً كانوا أو فجاراً، فيذكرون هذه الفروع الفقهية لأجل ذكر ما يميز أهل السنة عن غيرهم، وإلا فهذه الفروع الأصل أنها تبحث في كتب الفقه، وذكروها في كتب العقائد؛ لأنها أصبحت صفات عملية تميز أهل السنة عن غيرهم).

## د پيريان پر وجود باندې ايمان

جنيات يو موجود مخلوق دی چې له وجود څخه انکار يې کفر دی ځکه چې د پيريانو يا جنياتو د وجود څخه انکار له قرآن او سنتو څخه انکار دی نو پدې بنا دجنياتو په وجود ايمان يو له جملې دايمان په غيبو دی مونږ هغه نه وينو د اثبات لپاره د الله تعالی او

پيغمبر صلى الله عليه وسلم په ريښتنو خبرو باور لرو .

الله تعالى د ابليس او د هغه فوځ په باره کې فرمايي: [إِنَّهُ يَرَاكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُ مِنْ حَيْثُ لا تَرَوْنَهُمْ] (اعراف :٢٨).

ژباړه: هغه او دهغه ملګري تاسې له يو داسې ځای څخه وينې چې تاسې يې له هغه ځای څخه نشی ليدلای.

جنيات له اور څخه پيدا شوی دی چې ځنې يې مسلمان او ځنې کافر دي .

[وَأَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُونَ وَمِنَّا الْقَاسِطُونَ] (الجن :١٤).

ژباړه: ځنې د مونږ مسلمان دي او ځنې کافر .

جنيات په عبادت مکلف دي رسول د ثقلين حضرت محمد صلى الله عليه وسلم د انس او جن د پاره مبعوث شوی دی هغوی د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حضور کې حاضر شول او قرآنکريم ته يې غوږ نيولی او په هغه يې ايمان راوړی دی .

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِنَ الْجِنِّ فَقَالُوا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا * يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ وَلَنْ نُشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا] (الجن :٢).

ژباړه: ووايه (ای پيغمبره!) ماته وحې راليږل شوی ده چې د پيريانو يوې ډلې په غور سره قرآن ته غوږ کېښود، بيا له بيرته ستنيدو وروسته يې خپل قوم ته وويل: مونږ خورا يو عجيب قرآن اوريدلی دی چې د سمې لارې لورې ته لارښونه کوي نو له دې کبله مونږ په هغه ايمان راوړی اوس به مونږ هيڅکله له خپل پروردګار سره څوک شريک نه کړو .

**ايا جنيات د بل په صورت او شكل ليدل كيداى شي ؟**

په سنتو كې دا په ثبوت رسيدلې ده چې جنيات د انسان، حيوان او نورو په شكل كې ظاهريدلاى شي .

امام بخاري رحمه الله د ابى هريرة رضى الله عنه څخه دا روايت نقل كړى دى چې ابى هريرة وايي: وَكَّلَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِفْظِ زَكَاةِ رَمَضَانَ، فَأَتَانِي آتٍ فَجَعَلَ يَحْثُو مِنْ الطَّعَامِ، فَأَخَذْتُهُ وَقُلْتُ: وَاللهِ لأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فشكا حاجة وعيالا فرحمه أبو هريرة وتركه حتى تكرر هذا ثلاث مرات وفي الثالثة قال أبو هريرة: لأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللهِ وَهَذَا آخِرُ ثَلاثِ مَرَّاتٍ أَنَّكَ تَزْعُمُ لا تَعُودُ ثُمَّ تَعُودُ، قَالَ: دَعْنِي أُعَلِّمْكَ كَلِمَاتٍ يَنْفَعُكَ اللهُ بِهَا، قُلْتُ: مَا هُوَ؟ قَالَ: إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ (اللهُ لا إِلَهَ إِلا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ) حَتَّى تَخْتِمَ الآيَةَ، فَإِنَّكَ لَنْ يَزَالَ عَلَيْكَ مِنْ اللهِ حَافِظٌ، وَلا يَقْرَبَنَّكَ شَيْطَانٌ حَتَّى تُصْبِحَ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ . وحين أصبح أخبرت رسولَ الله صلى الله عليه وسلم بما حصل . فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا إِنَّهُ قَدْ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوبٌ . أَتَعْلَمُ مَنْ تُخَاطِبُ مُنْذُ ثَلاثِ لَيَالٍ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ؟ قَالَ: لا . قَالَ: (ذَاكَ شَيْطَان) .

ژباړه: رسول الله صلى الله عليه وسلم ما ته د روژې د زكات د حفاظت اوساتنې دنده وسپارله، يو كس راغى او خوراک په پټولو يې شروع وكړه، هغه كس مې ونيولو او و مې ويل: په الله سوګند تا به د رسول الله صلى الله عليه وسلم حضور ته پيش كوم، هغې وويل: زه ډير احتياج او عيال داره يم او د هغوى نفقه زما په غاړه ده . ابى هريرة وايي: د چيغو او فرياد وروسته مې خوشې كړ، او دا جريان درى ځله تكرار شو او په دريم ځل ابى هريرة

وايي: هغه مې بيا ونيولو او ومې ويل دا ځل تا حتماً رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ور ولم دا ستا دريم ځل دى چې وايې بيا نه راځم مګر بيا راغلې، هغه وويل ما خوشى کړه زه به تا ته داسې کلمات در وښيم چې الله تعالى هغه تا ته ګټور وګرځوي، ومې ويل: هغه کليمات څه دي؟ هغه وويل: کچيرې د بيده کيدو په وخت کې آيه کرسي ووايي ټوله شپه پرېښتې ستا حفاظت کوي او تر سبا پورې به تا ته شيطان نه شي در تلاى . ما هغه خوشى کړ . سبا مې رسول الله صلى الله عليه وسلم دا جريان بيان کړ، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: حال دا چې هغه يو دروغن کس ؤ مګر دا يې تا ته رښتيا ويلي دي . بيا يې ما ته وويل: اى ابوهريرة دا درى ورځې ستا مخاطب څوک وو؟ عرض مې وکړ نه پوهيږم . رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل هغه شيطان وو .

همدارنګه تفسير الطبري ليکي: چې د بدر په غزا کې شيطان د سراقة بن مالك بن جعشم په صورت کې قريشو ته راغى او هغوى ته يې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د قتل خبر ورکړ (تفسير الطبري ١٢٥٦٤ - ابن كثير فى البداية النهاية) .

**د انسان په بدن باندې د شيطان او جن تصرف**

شرح فقه اکبر ليکي :

زمونږ په نزد شياطين پر بني آدم باندې تصرف کوي پر خلاف د معتزله چې هغوى وايي: دا ممکن نه ده چې شيطان د په بني آدم تصرف وکړي او هغه ته وسواس ور واچوي بلکې دا وسواس خپله د انسان نفس دى، دا نظر مردود دى ځکه الله سبحانه وتعالى فرمايي :[الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُم بِالْفَحْشَاء] (البقرة: ٢٦٨) .

ژباړه: شیطان تاسې له فقر ډاروي او د بدیو په لور درته بلنه کوي.

او دا قول د الله تعالی: [ إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيرِ] (فاطر:۶) .

ژباړه: یقیناً چې شیطان ستاسې دوښمن دی، نو دوښمن یې وګڼئ هغه خپل اندېوالان خپلې لارې ته بولي چې ټول د بلېدونکی اور ته د ورتلونکو څخه شي .

او په دلیل د قول د رسول الله صلی الله علیه وسلم:

« ان الشیطان یجري من ابن آدم مری الدم » (المسلم)

شرح فقه اکبر / ملا علي قاري ص ۳۷۹-۳۸۰).

په انسان باندې د جن د حملې یا دخول په اړه په فتاوي البلدالحرام کې داسې لیکل شوي دي :

ژباړه: د شعبان په میاشت کې په کال د ۱۴۰۷ د سعودي عربستان څنو محلي رسنیو داسې مقالې خپرې کړې چې په ریاض کې په مسلمانه ښځه باندې جن حمله کړې د هغه بدن کې داخل شوی دی او وروسته دغه جن خپل اسلام د ریاض شیخ عبدالله بن مشرف عمري ته اعلان کړی وو، زما (شیخ ابن باز) په وړاندې هم خپل اسلام اعلان کړی دی .

وروسته له هغې چې شیخ عبدالله په جن وهلې ښځه باندې د قرآن څو آیتونه لوستلی او د جن سره یې خبرې کړي وې هغه یې اسلام ته دعوت کړی وو، هغه ته یې د ظلم ګناه بیان کړې ؤ او د هغه څخه یې غوښتنه کړې وه چې د ښځې له بدن څخه ووځي، جن د هغه دعوت قبول کړ او د شیخ عبدالله په وړاندې یې خپل اسلام اعلان کړ .

وروسته شيخ عبدالله او د ناروغه ښځې اولياً ما ته راغلل تر څو د جن اسلام راوړل واروم .
ما د جن څخه د نومړې ښځې بدن د داخليدو د اسبابو په اړه پوښتنه وکړه چې دليل يې څه وو؟ هغه وويل: جن د ښځې په ژبه خبرې کولې مګر غږ يې د نر په شان وو او د هغه دليل يې بيان کړ . وروسته جن په واضح ډول خپل اسلام اعلان کړ او ويې ويل: چې زه د هندوستان يم بودايي مذهب وم . ما هغه ته نصيحت وکړ چې د الله تعالى تقوى اختيار کړه او ددې ښځې له بدن څخه ووځه او له ظلم څخه لاس واخله، هغه زما نصيحت قبول کړ، هغه ته مې وويل چې خپل قوم ته دې دعوت کوه، هغه هم وعده وکړه چې زه به خپل قوم ته دعوت کوم او د ښځې له بدن څخه خارج شو، او آخره خبره يې دا وه چې السلام عليکم .
وروسته ښځې په عادي خبرو پيل وکړ او روغه جوړه شوه .
(فتاوي البلدالحرام مسألة دخول الجني في بدن المصروع – ص۴)

### د دين په ټولو اصولو او اوامرو باندې ايمان

د اسلام پنځه بناوې مو بيان کړې چې عبارت دي له: کلمه شهادت، لمونځ، زکات، روژه او حج .
او د ايمان ارکانو مو هم بيان کړل چې عبارت له: ايمان پر الله تعالى، ايمان پر ملائکو، ايمان پر کتابونو، ايمان پر رسولانو، ايمان قدر او ايمان په ورځ د آخرت او په بيا ژوندي کېدو .
اوس سوال دا دی چې که څوک د اسلام پنځه بناوي او د ايمان ارکان مني خو د شريعت د نورو احکامو څخه لکه: امر بالمعروف، نهى عن منکر، جهاد، صله رحمى، او همدارنګه د اسلامي

شریعت د حرام کړی شویو شیانو لکه: شراب، زنا، رشوت، سود او نور څخه انکار کوي ایا دا کس مسلمان کیدای شي ؟

ځواب: نه

څکه دا اجمالي ایمان دی چې تر هر رکن لاندې ټول احکام او اوامر شامل دي، په الله تعالی، د هغه په رسول او په قرآن باندې د ایمان لرلو مقصد دا دی چې د الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم ټول اوامر به مني، ټول قرآن به مني حتی د قرآن د یو آیت څخه، یوې کلمې او یو حرف څخه انکار کفر دی .

امر بالمعروف او نهی عن المنکر، جهاد او نور په قرآن او سنتو ثابت دي منکر یې کافر دی .

د شرابو، زنا، سود، رشوت او نور حرمت په قرآن او سنتو ثابت دي د حرمت څخه منکر یې کافر دی .

**د دین په ټولو ارکانو د ایمان راوړلو ګټې :**

۱- د اسلامي شریعت سیده لاره د باطل او طاغوت څخه نجات .

۲- الله تعالی د مؤمنانو دفاع کوونکی دی .

[إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنْ الَّذِينَ آمَنُوا] (الحج: ۳۸)

ژباړه: یقیناً چې الله تعالی تل ترتله له مؤمنانو نه دفاع کوي .

۳- د ګناهونو بښنه، لقوله سبحانه وتعالی: [وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَآمَنُوا بِمَا نُزِّلَ عَلَى مُحَمَّدٍ وَهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَبِّهِمْ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَأَصْلَحَ بَالَهُمْ] (محمد: ۲).

ژباړه: او کومو کسانو چې ایمان راوړی او نیک عملونه یې کړي او هغه حق یې منلی چې د رب له لورې په محمد نازل شوی، الله یې ټولې بدی ریژولې او د هغوی حال یې ښه کړی دی .

۴- پورته والی او عزت، لقوله سبحانه وتعالی: [يَرْفَعْ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ] (المجادلة: ۱۱).
ژباړه: هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او پوه ورکړ شوی ده الله (جل جلا له) يې درجې لوړوي.
۵- شجاعت، ځکه د مؤمن په زړه کې يوازې د الله تعالی وېره وي .
۶- اخلاص د عمل، د خالص ايمان او عقيدې ثمره دا ده چې هر عمل د شرک او بدعت څخه پاک وي .
۷- نيک اخلاق، ځکه ايمان نيکو اخلاقو ته سړی دعوتوي .
۸- د مشکلاتو په تحمل کې مدد، ځکه ايمان سړي ته د فواحش او بدو کارونو څخه د صبر درس ورکوي، او انسان د مشکل پر وړاندې ښه صبر کولای شي .
۹- عزت نفس، ايمان سړی د ذليلو اعمالو څخه ژغورې د ايمان په وجه د سړي عزت نفس او عفت ساتل شوی وي .
۱۰- د بل د اسارت او غلامۍ نه نجات، ځکه په اسلام کې د هر ډول طاغوت، فساد او ظلم پر وړاندې جهاد دی چې د جهاد په وسيله د مسلمانانو دين، عزت، او اسلامي سرحدات ساتل کيږي .

# اوم فصل

## د توحيد او ایمان نواقض

د توحید او ایمان ضد شرک او کفر دی .

**د شرک تعریف:**

شرک د الله تعالی سره په عبادت کې شریک اختیارول هغه چې په هره طریقه وي او هر قسم فعلي، قولي او قلبي عبادت کې وي شرک بلل کیږي او یا غیر الله د الله تعالی سره برابرول کوم چې الله تعالی پیدا کړي دي .

د شرک په هکله الله تعالی ډیر ټینګار کړې دی چه بنده ورڅخه ځان وژغوري، او کنه نو دغه ګناه په دنیا کښی له توبی پرته د بخښنې هیڅ لار نه لري، بلکه مشرک سړي که بی توبی مړ شي نو ابدي او تل ترتله به د دوزخ په اور کښی وي، له همدې کبله د قرآنکریم په زیاتو آیاتونو کښی ورڅخه خپل بندګان ویرولي دي، او ورڅخه یي منع فرمایلی ده، لکه چه الله جلَّ جلاله فرمایي:

[وَاعْبُدُواْ اللّهَ وَلاَ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئًا] (النساء: ٣۶).

ژباړه: عبادت او بندګي وکړئ یواځې د الله تعالی، او د الله تعالی سره هیڅ شې شریک او برخمن مه منئ.

**شرک په دوه قسمه دی شرک اکبر او شرک اصغر**

شرک اکبر :

شرک اکبر (لوی شرک)، د الله تعالی سره په عبادت کې د غیر الله شریکولو ته شرک اکبر وایي چې د توحید او ایمان د بطلان سبب ګرځي او مرتکب یې د اسلام له دائرې څخه خارجیږي .

لکه: د غیر الله عبادت، د غیر الله څخه غوښتنه او دعا، د غیر الله لپاره ذبح، د غیر الله لپاره نذر کول .

د غیر الله مطلب دا دی چې د الله تعالی پرته هیڅ څوک د عبادت لائق نه دي ځکه د توحید کلمې (لا اله الا الله) همدا مقصد دی چې پرته له الله تعالی څخه د هیچا هغه که پیغمبر وي، ولي وي، ملائکه وي، کوم صالح کس وي او بل څوک او بل شی وي عبادت کول یې شرک اکبر دی .

دا عبادت که قولي وي فعلي وي شرک بلل کیږي .

**چې مهم اقسام یې دا دي :**

**۱- د غوښتنې، مدد او دعا شرک،** لقوله سبحانه وتعالی: [فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ] (سورة العنكبوت: ۶۵).

ژباړه: او کله چې مشرکان په کښتۍ کې سپاره شي نو له الله نه پداسې توګه غوښتنې کوي چې د هغه سوچه دین یې خپل کړی وي، خو چې الله یې وچې ته وباسي بیا نو شریکان نیسي .

**۲- د اطاعت او عبادت شرک،** لقوله سبحانه وتعالی :[اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَاباً مِنْ دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلا لِيَعْبُدُوا إِلَهاً وَاحِداً لا إِلَهَ إِلا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ] "سورة التوبة: الآية31".

ژباړه: هغوی خپل علماء او راهبان او د بی بی مریمې ځوی عیسی له الله نه پرته خپل باداران نیولي وو .په داسې حال کې چې هغوی

ته پرته له دې چې د يو الله عبادت وکړي د بل څه امر نه ؤ شوی . د عبادت وړ يوازې همغه يو ذات دی . الله له هغه څه نه پاک دی چې هغوی يې ورسره شريکوي .

**۳- د محبت پر ځای د اسلامي شعائرو سره بغض اوکينه چې د محبت غير الله شرک بلل کيږي،**

لقوله سبحانه وتعالی: [وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ مِنْ دُونِ اللَّهِ أَنْدَاداً يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللَّهِ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبّاً لِلَّهِ وَلَوْ يَرَى الَّذِينَ ظَلَمُوا إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعاً وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ] (سورة البقرة) .

ژباړه :او ځېنې خلک داسې هم شته چې د الله پرته نور شيان شريکان نيسي او مينه کوي د هغوی سره، له هغوی سره دومره مينه کوي چې بايد يوازې له الله سره شوی وای او مؤمنان له الله سره کلکه مينه لري .

د الله تعالی پرته د بل چا عبادت کول او الله تعالی سره د بل چا برابرول په ربوبيت، الوهيت او اسماء او صفاتو کې ستر ظلم دی .

[إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ] (لقمان:١٣).

ترجمه: بيشکه شرک ډير لوی ظلم دی.

او که څوک د شرک په حالت کې مړ شي توبه ونباسي په هغه باندې جنت حرام دی .

[إِنَّهُ مَن يُشْرِكْ بِاللهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللهُ عَلَيهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ] (المائدة:٧٢).

ترجمه: يقيناً شان دا دی چه هر چا شرک وکړ او برخمن يي ومنلو د الله تعالی سره، نو يقيناً حرام کړ الله تعالی پر ده باندې جنت، او ځای د بيرته ورتللو د ده اور دی او نشته ظالمانو مشرکانو ته هيڅ مرسته کوونکی.

الله تعالی د شرک څخه پرته ټول ګناهونه بښې چا ته يې چې خوښه شي مګر شرک نه بښي .

[ إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء وَمَن يُشْرِكْ بِاللّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلاَلاً بَعِيدًا ] (النسآء: ۱۱۶).

ترجمه: بې شکه الله جلّ جلاله نه بښي دا کار چه شريک وګڼل شي د الله تعالی سره، او بښنه کوي د هغه ګناه چه راښکته وي له شرک څخه، او هغه چا چه شرک وکړ له الله تعالی سره نو يقيناً ګمراه شو په ګمراهۍ لری سره له حق نه.

په رښتيا هم چې شرک او د غير الله عبادت کول د بنده د پاره ډير ستر ظلم دی ځکه الله تعالی انسان پيدا کړی دی، هغه ته روزي ورکوي او د هغه په ملک او هستۍ کې اوسيږي او د پيدايښت مقصد يې دا دی چې يوازې د الله تعالی عبادت وکړي نه د مخلوق.

الله سبحانه وتعالی د مشرکانو مثال بيانوي چې:

[ إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَن يَخْلُقُوا ذُبَابًا وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ وَإِن يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا لاَّ يَسْتَنقِذُوهُ مِنْهُ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ] (الحج: ۷۳).

ژباړه: يقيناً کوم څيزونه چې تاسې يې پرته له الله نه رابولئ، که ټول سره را ټول شي يو مچ نشي پيدا کولی. بلکي که مچ له هغوی څخه څه پورته کړي دوی يې خلاصولی ترې نه شي. نو غوښتونکی او هغه چې غوښتنه ترې کيږي دواړه بې وسه دي.

يعني: دا خو پريږه چې يو مچ هم نشي جوړولای خو که د دوی د بتان څخه چې دوی يې عبادت کوي کچيږي مچ څه شي وتښتوي دوی يې نشي ورڅخه اخيستلای.

شرک اصغر :

شرک اصغر (کوچنی شرک)، عبارت له هغه شرک څخه دی چې د الله تعالی په عبادت کې غیر الله شریک کړي، یعني عبادت په اصل کې الله تعالی لره وي مګر په هغه کې یو برخه او حصه د غیر الله لپاره هم وي لکه: ریا، په غیر الله باندې قسم کول او نور .

شرک اصغر کبیره ګناه ده لکن د توحید او ایمان باطل کوونکی نه دی.

مثال: یو سړی د مخلوق او یا غیر الله د پاره لمونځ کوي داسې چې اودس نه لري خو خلکو ته ځان ښيي چې ما لمونځ وکړ دا سړی مسلمان نه دی بلکي منافق دی او لمونځ یې اصلاً د غیر الله لپاره وو .

بل کس مثلاً د ماسپخین سنت لمونځ په ښه شان ادا کوي، تر څو خلک ووایي چې دی ښه لمونځ ادا کوي او د ده صفت وکړي .

نو اوس په اول او دوهم عبادت کې څه فرق دی ؟

ځواب :

اول صورت د عبادت شرک وو، ځکه عبادت یې کاملاً د غیر الله لپاره وو او شرک اکبر دی .

دوهم صورت په عبادت کې شرک څه ډول شرک، د عبادت ښایسته کول په دې نیت چې خلک د ده صفت وکړي، په اصل کې عبادت د الله لپاره وو خو په هغه کې شرک کړ شو چې ریا ده او دا شرک اصغر دی .

مثال: یو کس د کوډګر، کاهن او یا د قبر د صاحب لپاره ذبح کوي په دې نیت چې زما حاجت یې پوره کړ، او ما ته یې شفا را په برخه کړه (العیاذ بالله) نو دا ذبح د غیر الله لپاره شوه شرک اکبر دی .

مګر يو بل کس د الله تعالى لپاره ذبح کوي مګر خلکو ته ځان ښيې تر څو هغوى يې صفت وکړي نو دا ريا او شرک اصغر شو .

د شرک څخه پرهيز او ويره کول :

په هر مسلمان باندې واجبه ده چې د ټولو ګناهونو څخه چې د الله تعالى د غضب او نا خوښى سبب ګرځي ځان وساتي او د ټولو منکراتو او نفسي خواهشاتو پر وړاندې د خپل نفس سره مجاهده وکړي.

په خاصه توګه دشرک څخه ځان ساتل او زيات ويره او خطر احساسول پکار دي ځکه شرک د الله په حق کې ډير ستر ظلم دى، داسې ګناه ده چې د توبې پرته نه بښل کيږي، داسې ګناه ده چې ټول نيک او صالح اعمال بربادوي .

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [ إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ ] (النساء ٤٨) .

ژباړه: بې شکه الله پاک يوازې شرک نه بښي او له دې پرته چا ته يې چې خوښه شي هر څه بښي .

او فرمايي: [وَلَوْ أَشْرَكُواْ لَحَبِطَ عَنْهُم مَّا كَانُواْ يَعْمَلُونَ] (الانعام ٨٨) .

ژباړ: او که هغوى شرک کړى واى نو ټولې کړنې به يې بابيزه شوى واى.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :من مات وهو يدعو من دون الله نداً دخل النار (البخاري) .

يعنې: څوک چې مړ شي او هغه د الله تعالى پرته بل څوک بللى وي (په عبادت کې يې شريک نيولى وي)، داخل به شى اور ته .

ابراهيم عليه السلام چې د مشرکانو ټول بتان يې پر خپل لاس نړولي ؤ له شرک څخه ويريدلى دى او داسې دعا يې کړې ده :

[رَبِّ اجْعَلْ هَذَا الْبَلَدَ آمِنًا، وَاجْنُبْنِي وَبَنِيَّ أَن نَّعْبُدَ الْأَصْنَامَ * رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ] (ابراهيم:۳۵-۳۶) .

ژباړه: (وويل ابراهيم) اى زما ربه ! دغه د مكې ښار د امن ځاى وګرځوه او ما او زما اولاده له دېنه وژغوره چې د بتانو عبادت وكړو، اى زما ربه ! دغو بتانو ډير خلك لار وركې او ګمراه كړي دي . نو چاچې زما منته وكړه هغه زما د ډلې دي او چا چې زما نه سر غړونه كړې ده نو ته ښه بښونكى او ډير مهربان يې .

رسول الله صلى الله عليه وسلم د شرك په باره كې پخپلو امتيانو وېريدلى دى او فرمايي :«أخوف ما أخاف عليكم الشرك الأصغر، فسئل عنه، فقال: الرياء» (الطبرانى ۴/۲۵۳) .

يعني: د څه په باره چې زه پر تاسې وېرېږم هغه شرك اصغر دى، په دې باره كې چا پوښتنه وكړه، ويې فرمايل: رياء .

يعني زه چې پر تاسې وېرېږم هغه شرك اصغر (رياء) ده .

رسول الله صلى الله عليه وسلم د شرك نه وروسته د خپل امت په باره كې د دنيا سره د زيات محبت په وجه وېريدلى دى او داسې يې فرمايلي دي :

«إِنِّي فَرَطٌ لَكُمْ وَأَنَا شَهِيدٌ عَلَيْكُمْ، وَإِنِّي وَاللَّهِ لأَنْظُرُ إِلَى حَوْضِي الآنَ، وَإِنِّي أُعْطِيتُ مَفَاتِيحَ خَزَائِنِ الأَرْضِ، أَوْ مَفَاتِيحَ الأَرْضِ، وَإِنِّي وَاللَّهِ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا بَعْدِي، وَلَكِنْ أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنَافَسُوا فِيهَا». (بخارى:۱۳۴۴)

ژباړه: زه به (د قيامت په ورځ) ستاسو نه مخكې وم او پر تاسې به شاهد وم، په الله تعالى قسم چې همدا اوس خپل حوض (كوثر) وينم . او د

ځمکې د ټولو خزانو کلیانې ماته راکړ شوی دي، زما ویره دا نه ده چې زما څخه به وروسته تاسې ټول مشرکان شئ بلکي ددې څخه ویرېږم چې تاسې به د مال په جمع کولو کې یو د بل سره سیالي کوئ .

د ریاکارانو په اړه په قرآنکریم کې راغلي دي :

[يُرَآؤُونَ النَّاسَ وَلاَ يَذْكُرُونَ اللهَ إِلاَّ قَلِيلاً] (النسآء :۱۴۲) .

ژباړه: دوی د خلکو پر وړاندې ځان ښوودنه کوي او الله نه یادوي خو ډېر لږ .

**د ریا تعریف:** د ریا حاصل دا دی چې د یو عمل څخه د خلکو په نظر کې د خپل ځان د لویوالی د لاسته راوړلو لپاره یو ذریعه جوړه کړي (تحفة العلماء ج ۲ ص ۱۶۰) .

یا په بل عبارت خلکو ته خپل نیک اعمال ښکاره کوي تر څو دی د خلکو په زړه کې محبوب او عابد جوړ شي او خلک ده ته عابد او ښه سړی ووایي او د ده صفت وکړي.

**د ریاکارۍ ځنې نښې:**

۱- منافق او دوه مخئ وي.

۲- د خلکو په مخ کې به په ډېره توجه او عاجزۍ عبادت کوي .خو په تنهایی کې به بیا په بل حال وي.

۳- دا خوښوي چې خلک دی په ټولو کارونو کې وستایي.

۴- کله یې چې خلک کارونه ستایي نو د هغه په اضافه کولو کې کوښښ کوي خو که مدح او صفت یې ونشي هغه عمل کموي او یا یې بالکل پرېږدي.

۵- اهل د چل، فریب او دوکې ورکولو وي.

۶- پر نورو منت بار وي.
۷ -کوښښ کوي خپل نیک اعمال د خلکو په مخ کې تر سره کړي.
۸ -سترګې یې نورو ته نیولې وي د مخلوق طمع کوي او په خدای (جل جلاله) توکل نه کوي.
۹ -ظاهراً الله تعالی یادوي خو په زړه کې د الله تعالی ډیر کم ذکر کوي.
۱۰- ځان غوښتونکی او کبرجن وي.

**د ریا بدوالی په قرآن او حدیثو کې:**

الله سبحانه وتعالی فرمایي :[یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُواْ لاَ تُبْطِلُواْ صَدَقَاتِکُم بِالْمَنِّ وَالأذَى كَالَّذِي يُنفِقُ مَالَهُ رِئَاء النَّاسِ] (البقره:۲۶۴).

ژباړه: ای مؤمنانو! خپل خیرات په منت کولو او آزار رسولو سره مه باطلوئ لکه هغه چا غوندې چې خپله شتمني د خلکو د شودنې لپاره لګوي.

او فرمایي :[یُرَآؤُونَ النَّاسَ وَلاَ یَذْکُرُونَ اللّهَ إِلاَّ قَلِیلاً] (النساء :۱۴۲).

ژباړه: دوی د خلکو پر وړاندې ځان ښوودنه کوي او الله نه یادوي خو ډیر لږ.

ابن عباس رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: «من سمع سمع الله به. ومن راءی راءی الله به» (المسلم :۲۹۸۶) .

ژباړه: کوم کس چه څه عمل د شهرت د پاره کوي الله تعالی به هغه د قیامت په ورځ په رسوائی سره مشهور کړي او څوک چه د ریاکاری او ښودنې د پاره عمل کوي الله تعالی به هم هغه ته د ریاکارانو په شان بدله ورکړي .

ابی هریرة رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«قال الله تبارك وتعالی: أنا أغنی الشركاء عن الشرك. من عمل

عملا أشرك فيه معي غيري، تركته وشركه» (المسلم :٢٩٨٥).

ژباړه: الله تعالى فرمايي: چه زه د شرك كونكى د شرك نه بې پروا يم، كوم څوك چه داسې عمل وكړي چه په هغې كې زما نه بغير بل څوك را سره شريك كړي، نو زه به هغه او د هغه شريك دواړه سره پريږدم.

**هغه څه چې ريا نه ده:**

عن ابى ذر رضي الله عنه، قيل لرسول الله صلى الله عليه وسلم:« أرأيت الرجل يعمل العمل من الخير، ويحمده الناس عليه؟ قال "تلك عاجل بشرى المؤمن» (المسلم :٢٦٤٢).

ژباړه: د ابې ذر نه روايت دى چه له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وشوه چه د هغه سړي په باره كې ستا نظر څه دى؟ چې څه نيک كار وكړي او خلک د هغه صفت شروع كړي، نبى صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دا د مؤمن د پاره عاجل انعام او زيرې دى .

يعنى په دې سره د هغه د آخرت اجر نه كميږي ځكه چه د ده نيت دا نه وو چې خلک د ده صفت وكړي، علماؤ دا بيان هم كړى دى چه كه كوم د صلاحيت يا مال واله كس ددې د پاره څه عمل وكړي چې خپل ماتحت كسان يې هغه ښه عمل ته تشويق او ترغيب شي نو دا هم ريا نه ده.

**ريا سخته خطرناكه ده خو د رسول الله صلى الله عليه وسلم لارښونه په نظر كې ونيسئ:**

ريا سخته خطرناكه ده او شرك شميرل كيږي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :« الشرك فيكم أخفى من دبيب النمل على الصفا ألا أدلك على شيء إذا فعلته أذهب الله عنك صغار ذلك وكباره؟ تقول: « اللهم إني أعوذ بك أن أشرك

بك وأنا أعلم وأستغفرك لما لا أعلم » (صحيح الجامع ۲۸۷۶).

ژباړه: په تاسې کې شرک په يوه ډېره باندې د مږې د پښو آواز نه هم پټ دی، آيا تاسې ته د داسې شي لارښوونه ونه کړم چه که هغه عملي کړئ الله تعالی به تاسې د کوچنی او لويې ريا نه لرې وساتي؟ دا دعا به وايئ: «اللهم إني أعوذ بك أن أشرك بك وأنا أعلم وأستغفرك لما لا أعلم»

يعنی: ای الله! زه پر تا پنا غواړمه له دې نه چې ستا سره څوک شريک کړم او حال دا چې زه ور باندې پوه وم او ستا نه بخښنه غواړم په هغه چې زه وربانديې نه پوهيږم .

پس مونږ بايد هره ورځ دا دعا ووايو [اللهم إني أعوذ بك أن أشرك بك وأنا أعلم وأستغفرك لما لا أعلم] تر څو الله تعالی مونږ ته له ريا څخه نجات راکړي.

**د شرک څخه د ځان ساتنې اسباب**

١- شرک پيژندل .

شيخ علی قاري په شرح فقه اکبر کې ليکلي دي د ايمان د ماتوونکو شيان پيژندل واجب دي .

شيخ عبدالرحمن په فتح المجيد وايي :"فلا يأمن من الوقوع في الشرك إلا من هو جاهل به"

يعنې: څوک چې شرک ونه پيژني هغه په شرک باندې د اخته کېدو نه په امن کېدای نشي .

٢- د شرک څخه د خلکو منع کول .

ځکه علم پخپل ذات کې امانت دی چې نورو ته په رسول کيږي او امر بالمعروف او نهی عن المنکر ددې امت د علماؤ او ټولو مسلمانانو مسئوليت دی .

**په شرک کې د اخته کېدو اسباب**

**اول- د صالحانو په حق کې غلو :**

د صالحو كسانو په حق كې غلو، يعني د حد څخه تېرېدل داسې چې د شرعي خلاف د هغه د حد څخه زيات صفت، پاكې او تقدس كول .
مونږ ته چې اسلامي شريعت د صالحو كسانو حد را ښودلى دا دى چې: د هغوى سره د الله تعالى پخاطر دوستي او محبت وساتو، د هغوى سره د الله تعالى پخاطر ملګري او په نيكو كارونو كې د يو د بل مدد وكړو .
ددې څخه علاوه د صالحو كسانو په حق كې غلو كولو څخه اسلامي شريعت منع كړي يو ځكه د پخوانيو امتونو د هلاكت يوه وجه دا ؤ چې د صالحو كسانو په باره كې يې غلو اختيار كړه .
الله سبحانه وتعالى فرمايي :[يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللَّهِ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِّنْهُ]
ژباړه: اى اهل كتابو! پخپل دين كې له پولو مه اوړئ او الله ته پرته له حقو خبرو د بل څه نسبت مه كوئ يقيناً خبره همدا ده چې مسيح عيسى د مريمې زوى او د الله رسول دى هغه كلمه يې ده چې مريمې ته يې وركړې او د الله له لوري روح وو .
رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«إياكم والغلو، فإنما أهلك من كان قبلكم الغلو» (رواه الإمام أحمد والترمذي).
ژباړه: پرهيز وكړئ تاسې له غلو، ځكه چې د تاسې نه مخكې چې وو هغوى د دغه غلو په وجه هلاك شوى وو .
په صحيح البخاري كې د ابن عباس رضى الله عنهما روايت نقل شوى دى چې: الله سبحانه وتعالى فرمايلي:

[وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ ولَا تَذَرُنَّ وَدًّا ولَا سُوَاعًا ولَا يَغُوثَ وَيعُوقَ وَنَسْرًا * وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا] (نوح: ۲۳، ۲۴).

ژباړه :او ويې ويل: بايد خپل خدايان پرې نږدئ، بايد ود، سواع، يغوث او يعوق او يسر بتان پرې نږدئ . او په تحقيق چې ډير يې بې لارې کړل .

ابن عباس رضی الله عنه چې د امت ستر عالم او د قرآن ترجمان دی وايي: ود، سواع، يغوث، يعوق او نسرا د نوح عليه السلام د قوم صالح کسان وو، چې هغوی د دغو کسانو په حق کې غلو وکړه د شيطان د وسواسو په وجه يې د هغوی د مجسمو او قبرونو لمانځنه او عبادت کولو .

نو ځکه جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم خپل امت ته وصيت کړی دی چې زما قبر د عبادت ځای مه ګرځوئ او الله تعالی ته يې داسې دعا کړې ده :

«اللَّهمَّ لا تجعل قبري وثنًا يُعبد»

ژباړه: ای الله ! زما قبر بت او د عبادت کولو ځای مه ګرځوه .

او ددې عمل په وعيد کې فرمايي: «اشتد غضب الله على قوم اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد».

يعنې: سخت شو ی عذاب د الله تعالی په هغه قوم باندې چې د انبياؤ قبرونه يې مسجد ګرځولی دی .

نن عصر کې هم د قبرونو عبادات او د جاهليت د وخت شرکي اعمال رواج لري .

د مثال په توګه: ځينې چې کله ناوی کور ته وړي لومړی يې د مزار د روضی څخه چاپيره طواف ورکوي تر څو د دوی په ګمان مبارکه شي، دا عمل که د تعظيم لپاره وي شرک دی .

او ځينې کسان خپله ناوې د غزني په زيارتونو ګرځوي او ناوې پخپل لاس منجورانو

ته قلنګ ورکوي، او همدارنګه په ډيرو سيمو کې د ناوې سورلی د ذبحه کړي چرک يا څاروي په وينه رنګوي چې د دوی په اصطلاح مبارک شي، دا کار هيڅ اصل نلري تبرک غير مشروع دی چې بيان يې وروسته را روان دی .

**دوهم ـ د شرکي خبرو او اقوالو څخه پرهيز :**

د شرک ځينې اقوال او خبرې په لاندې ډول دي :

١- د ډيرو قسمونو يادولو څخه پرهيز کول .

٢- زماني ته د ښکنځل کولو څخه پرهيز :

د ابی هريرة رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: «قال الله – تعالی- يؤذيني ابن آدم، يسب الدهر » (رواه البخاري) .

ژباړه : الله تعالی فرمايي: د آدم بچيه ما ته ضرر رسوي هغه دا چې زمانې ته ښکنځل کوي .

په نورو احاديثو کې باد او نور ياد شوي دي يعنې: ورځې، شپې، باد، باران او نورو ته بد ويل اصلاً الله جل جلا له ته بد ويل دي (العياذ بالله) ځکه چې دا هر څه د هغه (جل جلاله) په امر چليږي .

**٣ـ السلام على الله ويل غلط دي :**

السلام على الله ويل غلط دي او ددې قول څخه رسول الله صلی الله عليه وسلم منع فرمايلي دي ده .

فرمايي: «لا تقولوا: السلام على الله فإن الله هو السلام» (متفق عليه) .

يعنې: تاسې مه واياست چې: السلام على الله (سلامتيا د وي پر الله) پس يقيناً چې الله تعالی السلام (سالم او سلامت دی) .

**٤ـ داسې ويل چې ان شاء الله، الله به دې وبښي غلط دي :**

داسې ويل چې: اللهم اغفرلي ان شئت او ځينې خلک وايي: جزاک الله خيراً ان شاء الله، يا

داسې الله به تا ته ان شآء الله بښنه وکړي، داسې ویل ځکه غلط دي چې الله تعالی د بښنې او جزا څخه عاجز نه دی او د خالص یقین سره ټکر دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي :
: «لا يقل أحدكم: اللَّهمَّ اغفر لي إن شئت، اللَّهمَّ ارحمني إن شئت» (متفق عليه) .
يعنې: د تاسې څخه دې څوک نه وايي چې: اى الله ما ته بښنه وکړه که د اراده او خوښه وي، او په ما باندې رحم وکړه که دې اراده او خوښه وي .

**۵- ملک الملوک، قاضی القضاة، شاهنشاه نومونو څخه پرهيز :**

د ملک الملوک (د پاچاهانو پاچا) یا شاهنشاه، قاضی القضاء (دقاضيانو قاضي)، سلطان السلاطين (د پاچاهانو سلطان) او داسې نور نومونه ايښودل د مخلوق له شانه سره نه لګي ځکه چې دا نمونه د الله د ستر مقام لپاره خاص دي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي: : «إن أخنع اسم عند الله، رجل تسمى ملك الأملاك»
ژباړه: د الله تعالی په نزد ذليل ترين نوم هغه دی چې د يو سړي نوم ملک الاملاک وي (دپادشاهانو پادشاه) يا په دې نومول شوی وي .

سفيان وايي: "مثل شاه شاه" يا شاهنشاه يعنې يوازې ملک املاک ته خاص نه بلکي هر هغه صفت چې الله تعالی ته خاص وي د داسې نوم او لقب ايښودل حرام دي په حديث شريف په دې باره داسې وعيد ذکر شوی دی: «أغيظ رجل على الله يوم القيامة وأخبثه» (متفق عليه) .
يعنې: (دغو لقب واله) سړي ته به الله تعالی د قيامت په ورځ په غضب وي او هغه به بد ګڼې .

# آتم فصل
# توسل

**د توسل تعريف:**

توسل په لغت کې تقرب او نږېوالى ته وايي او د شريعت په اصطلاح کې د نيکو اعمالو په وسيله الله سبحانه وتعالى ته نږدې کېدو او وسيله کولو ته توسل وايي .

لقوله سبحانه وتعالى: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَابْتَغُواْ إِلَيهِ الْوَسِيلَةَ...] (المائده ٣٥) .

ژباړه: اى مؤمنانو! له الله نه وډار شئ او د هغه په لور وسيله ولټوئ (صالح اعمال) .

د علماؤ په اتفاق د وسيلې نه مراد صالح اعمال او ښه کارونه دي .

توسل په مشروع او غير مشروع تقسيم شوى دى .

**مشروع توسل:**

مشروع توسل هغه دى چې د الله تعالى د محبت او رضا د پاره د صالحو اعمالو په واسطه تر سره شي چې لاندې ډولونه لري:

**اول:**

توسل د الله تعالى په اسماء او صفاتو، الله سبحانه وتعالى فرمايي :

[وَلِلّهِ الأَسْمَاء الْحُسْنَى فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُواْ الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَآئِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُواْ يَعْمَلُونَ] (الأعراف:)

ژباړه: او الله پاک د غوره نمونو څښتن دى په هغو سره يې ياد کړئ او د هغو خلکو څه پروا مه ساتئ چې د الله په نمونو کې کوږوالى کوي . ډېر ژر به هغوى ته د خپلو کړنو جزاء ورکول شي .

لکه بنده په دعا کې وايي ای زما رحيمه ربه ته په ما رحم وکړئ ای غفوره پروردګاره ته ما ته عفوه وکړې او داسې نور.

قال أبوحنيفة رحمه الله :(لا ينبغي لأحد أن يدعو الله إلا به والدعاء المأذون فيه المأمور به ما استفيد من قوله تعالى " ولله الأسماء الحسنى فادعوه بها وذروا الذين يلحدون في أسمائه سيجزون ما كانوا يعملون).

(الدر المختار من حاشية رد المحتار: ٦/٣٩٦، شرح العقيدة الطحاوية ص٢٣٤ , وشرح الفقه الأكبر للقاري ص ١٩٨).

ابی حنيفه رحمه الله وايي: د هيڅ چا د پاره نه ښايي (جايز نه ده) چې پرته له الله تعالی بل څوک وبولې مګر دا چې په دعا کې يوازې الله تعالی وبولې، په دليل د دغه آيت شريف: ولله الأسماء الحسنى فادعوه .....

**دوهم :**

الله تعالی ته د ايمان او توحيد په وسيله توسل کول، الله سبحانه وتعالی فرمايي: [رَبَّنَا آمَنَّا بِمَا أَنزَلَتْ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُولَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ] (آل عمران ٥٣) .

ژباړه: ای زمونږ ربه! مونږ ايمان راوړی دی په هغه کتاب چې تا نازل کړی دی او پيروي مو کړې ده د رسول ستا نو وليکه مونږ سره له شاهدانو (زمونږ نمونه د منونکو په فهرست کې وليکه) .

**دريم:**

توسل کول په خپلو نيکو اعمالو لکه په لمونځ، روژه، صدقه او د محرماتو نه ځان ساتل . لکه په صحيحينو کې قصه د دريو نفرو ذکر شوی ده چې دوی په يوه غار کې وو ډبره را ولويده او د غار خوله يې بنده کړه نو دوی الله تعالی ته د خپلو نيکو اعمالو په

يادولو او توسل سره دعا وکړه او الله تعالى پخپل فضل د غار له خولى څخه ډبره لرې کړه.
د ديني فائدې لپاره د غو دريو کسانو قصه را نقلووو:
وعن أبي عَبْد الرَّحْمَن عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخطَّابِ، رضي الله عنهما قال: سَمِعْتُ رسول الله صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّم يَقُولُ» :انْطَلَقَ ثَلاَثَةُ نفر مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حَتَّى آوَاهُمُ الْمبيتُ إِلَى غَارٍ فَدَخَلُوهُ، فانْحَدَرَتْ صَخْرةٌ مِنَ الْجبلِ فَسَدَّتْ عَلَيْهِمْ الْغَارَ، فَقَالُوا: إِنَّهُ لا يُنْجِيكُمْ مِنْ الصَّخْرَةِ إِلاَّ أَنْ تَدْعُوا الله تعالى بصالح أَعْمَالكُم.
قال رجلٌ مِنهُم: اللَّهُمَّ كَانَ لِي أَبَوانِ شَيْخَانِ كَبِيرانِ، وكُنْتُ لاَ أَغبِقُ قبْلهَما أَهْلاً وَلا مالاً فنأَى بِي طَلَبُ الشَّجرِ يَوْماً فَلمْ أُرِحْ عَلَيْهمَا حَتَّى نَامَا فَحَلبْت لَهُمَا غبُوقَهمَا فَوَجَدْتُهُمَا نَائِميْنِ، فَكَرِهْت أَنْ أُوقظَهمَا وَأَنْ أَغْبِقَ قَبْلَهُمَا أَهْلاً أَوْ مَالاً، فَلَبِثْتُ وَالْقَدَحُ عَلَى يَدِى أَنْتَظِرُ اسْتِيقَاظَهُما حَتَّى بَرَقَ الْفَجْرُ وَالصِّبْيَةُ يَتَضاغَوْنَ عِنْدَ قَدَمى فَاسْتَيْقظَا فَشَربَا غَبُوقَهُمَا .اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتُ فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَفَرِّجْ عَنَّا مَا نَحْنُ فِيهِ مِنْ هَذِهِ الصَّخْرَة، فانْفَرَجَتْ شَيْئاً لا يَسْتَطيعُونَ الْخُرُوجَ مِنْه.
قال الآخر :اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانتْ لِيَ ابْنَةُ عمٍّ كانتْ أَحَبَّ النَّاسِ إِلَيَّ » وفي رواية: « كُنْتُ أُحِبُّهَا كَأَشد مَا يُحبُّ الرِّجَالُ النِّسَاءِ، فَأَرَدْتُهَا عَلَى نَفْسهَا فَامْتَنَعَتْ مِنِّى حَتَّى أَلَمَّتْ بِهَا سَنَةٌ مِنَ السِّنِينَ فَجَاءَتْنِى فَأَعْطَيْتُهَا عِشْرينَ وَمِائَةَ دِينَارٍ عَلَى أَنْ تُخَلِّيَ بَيْنِى وَبَيْنَ نَفْسِهَا ففَعَلَت، حَتَّى إِذَا قَدَرْتُ عَلَيْهَا » وفي رواية: »فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا، قَالت: اتَّقِ الله ولا تَفُضَّ الْخاتَمَ إِلاَّ بِحَقِّه، فانْصَرَفْتُ عَنْهَا وَهِىَ أَحَبُّ النَّاسِ إِليَّ وَتركْتُ الذَّهَبَ الَّذي أَعْطَيتُهَا، اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتُ

فَعَلتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ عَنَّا مَا نَحْنُ فِيهِ، فانفَرَجَتِ الصَّخْرَةُ غَيْرَ أَنَّهُمْ لا يَسْتَطِيعُونَ الْخُرُوجَ مِنْهَا.

وقَالَ الثَّالِث: اللَّهُمَّ إِنِّي اسْتَأْجَرْتُ أُجرَاءَ وَأَعْطَيْتُهمْ أَجْرَهُمْ غَيْرَ رَجُلٍ وَاحِدٍ تَرَكَ الَّذي لَّه وذهب فثمَّرت أجره حتى كثرت منه الأموال فجائنى بعد حين فقال يا عبد الله أَدِّ إِلَيَّ أَجْرِي، فَقُلْت: كُلُّ مَا تَرَى مِنْ أَجْرِك: مِنَ الإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَم وَالرَّقِيق فقال: يا عَبْدَ اللَّهِ لا تَسْتهْزِيْ بي، فَقُلْت: لاَ أَسْتَهْزِيُ بك، فَأَخَذَهُ كُلَّهُ فاسْتاقَهُ فَلَمْ يَتْرُكْ مِنْه شَيْئا، اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتُ فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ عَنَّا مَا نَحْنُ فِيه، فَانْفَرَجَتِ الصَّخْرَةُ فخرَجُوا يَمْشُونَ » متفقٌ عليه.

له حضرت ابو عبد الرحمن عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دي فرمايي:

له نبي صلي الله عليه وسلم څخه مې واوريدل چې ويې فرمايل: د تاسې څخه مخکې دري کسه په سفر روان شول او د شپې تيرولو لپاره يوه غار ته ننوتل، ناڅهان يوه لويه ډبره له غره څخه را ورغړيده او د غار خوله يې بنده کړه، دوي وويل چې هيڅ شي به تاسې ته نجات درنه کړي مګر دا چې خپل نيک اعمال الله جل جلاله ته واسطه کړو او مونږ ته نجات را کړي.

يوه له دوي څخه وويل: يا الله زما مور او پلار ډير زاړه او نا توانه وو، ما به د دوي نه تر مخه خپل اولادونه نه مړول تر څو به مې چې دوي نه وو ماړه کړي، يوه ورځ د ونې په لټه کې لرې ولاړم کله چې بيرته را وګرځيدم دوي ويده شوي وو ما چې کله د دوي برخه شيدې راوړې ګورم چې دوي ويده دي نو ما دا ښه ونه ګڼله چې دوي له خوبه راويښ کړم يا دا شيدې په خپلو اولادونو وڅښم ما تر هغې صبر وکړ چې

دوي را ویښ شي تر دې چې سهار شو دا په داسې حال کې چې بچیان مې د پښو سره له لوږې شور او غوغا کوله، تر څو دوی له خوبه را پاڅیدل او خپلې شیدې یې وڅښلې.
یا الله که ما دا کار ستا د رضا لپاره کړی وي مونږ ته د دغه مشکل (ډېرې مشکل) نه نجات راکړه.
پس دا ډېره دومره لرې شوه چې له هغه وتلي نه شوای.
بل ملګري وویل: یا الله! زما یوه د کاکا لور وه چې په ټولو خلکو کې ماته محبوبه وه، بل روایت کې راځي چې په هغه لوړه درجه چې نارینه ښځې محبوبې لري هغه ما ته محبوبه وه، ما غوښتل له هغه سره یوځایوالی وکړم ولې هغه له دې منع وکړه، ترڅو داسې یو کال راغی چې قحطي وه هغه ما ته راغله او یو سل او شل دیناره مې په دې شرط ورکړل ترڅو له ما سره یو ځایوالي وکړي هغې دا کار وکړ تر څو چې ما پرې تسط پیدا کړ، هغې وویل: له الله جل جلاله څخه ووېرېږه او دغه مهر (کنایه د بکارت له پردې څخه) بې له حق څخه یې مه لرې کوه، زه په داسې حال کې چې دا ماته ډېره محبوبه وه د دې څخه لرې شوم او هغه مال چې ما ورکړی وو له هغې هم تېرشوم یا الله (جل جلاله) که دا کار ما ستا د رضا لپاره کړي وي مونږ ته له دې مشکل نه نجات راکړې، ډېره لږ نوره هم لرې شوه خو دوي وتلاي نه شوای.
دريم وویل: یا الله (جل جلاله) ما سره مزدوران وو او مزدوري مې یې هم ورکړه غیر له یوه کس چې خپله مزدوري یې زما سره پرېښوده او ولاړ، ما د هغه مزد په تجارت کې ولګاوه چې هغه ډېره ګټه وکړه هغه پس له څه

وخته راغی او ویې ویل: اې د الله بنده هغه زما مزدوري راکړه ما ورته وویل: دغه ټول اوښان،غواګانې، پسونه او غلامان چې وینې د تا دي. ویې ویل: اې دالله بنده ما باندې مسخرې مه کوه. ما ورته وویل چې مسخرې نه کوم، دې وخت کې هغه ټول دغه مالونه له ځان سره یوړل او هیڅ شي یې باقي پرې نه ښودل، یا الله (جل جلاله) که دا کار ما ستا د رضا لپاره کړی وي مونږ ته له دې مشکل نه نجات راکړې، پس هغه ډبره د غار له خولې څخه لرې شوه او دوی له غار څخه بیرون را ووتل.

په دې حدیث شریف کې څو ټکو ته اشاره شوې:
د سختۍ په وخت کې دعا کول.
توسل په نیکو اعمالو سره جواز لري.
د مور او پلار خدمت او احسان او د دوي برتري په اولاد او اهل باندې.
عفت او پاکدامني او د نفسي خواهشاتو مخالفت لوي فضیلت لري.
په معاملاتو کې ځوانمردي او د امانت ادا کول د لوي اجر او فضیلت خبره ده.
او د الله (جل جلاله) د اولیاوو د کرامت اثبات.
او دا چې د دې دریو ملګرو نیت خالص د الله جل جلاله رضا وه او الله جل جلا له ته د دوي اعمال قبول شوي و نو ځکه ورته الله جل جلاله د دوي د نیکو اعمالو په وسیله ورته له دې مشکل څخه نجات ورکړ.
الله (جل جلاله) د مونږ ته هم د نیکو اعمالو توفیق او خالص نیت نصیب کړي.

**څلورم:** د خپل فقر او بې چارګۍ او خسران په یادولو توسل کول :

داسې چې بنده خپل رب (جل جلاله) ته د خپل فقر بې وسۍ او خسران په وسیله توسل کوي لکه

الله تعالى دخپل نبي حضرت ايوب عليه السلام قصه داسې بيانوي : [وَأَيُّوبَ إِذْ نَادَى رَبَّهُ أَنِّي مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَأَنتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ] (الانبياء ٨٣) .

ژباړه: او ياد کړه (اى محمده!) قصه د ايوب کله يې چې غږ وکړ رب خپل ته چې يقيناً ما ته رسېدلى دى ضرر (رنځ او مرض په بدن کې) او ته ډير مهربانه يې له ټولو مهربانه کوونکو څخه .

او د خپل خسران په يادولو توسل کول، لکه د حضرت يونس عليه السلام حال چې الله تعالى يې داسې بيانوي: [فَنَادَى فِي الظُّلُمَاتِ أَن لاَّ إِلَهَ إِلاَّ أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ] (الأنبياء ٧٨) .

ژباړه: پس غږ يې وکړ په تيارو کې (داسې) چې نشته لائق د عبادت مګر ته يې پاکي تا لره ده، يقيناً چې زه وم له ظلم کوونکو څخه .

**پنځم:**

د مسلمان او صالح کس په دعا توسل کول، او د هغه څخه دعا غوښتل په شرط ددې چې ژوندى وي، ځکه چې صحابه کرامو رضوان الله عليهم له نبى کريم صلى الله عليه وسلم څخه د باران دعا غوښتې وه.

د يو مسلمان دعا د بل مسلمان لپاره قبليږي .

د مسلم په حديث شريف راغلي دي: (دعوة المسلم لأخيه، بظهر الغيب، مستجابة. عند رأسه ملك موكل. كلما دعا لأخيه بخير، قال الملك الموكل به: آمين. ولك بمثل)". (رواه المسلم) .

ژباړه: د مسلمان سړى دعا دخپل مسلمان ورور دپاره په غايب کې قبليږي، دهغه سره يوه د موکل په نوم فرښته ده چې دهغه دنده ده چې هر کله هغه خپل کوم ورور ته غايبانه

ښه دعا کوي، نو هغه فرښته وربانديٍ آمين وايي او وايې تا لره دې همدغسې خير درکړي (ستا په حق دې هم د هغه په مثل وي کوم چې مسلمان ورور ته دې وغوښتل) (رواه مسلم) .

**ممنوع توسل :**

هغه توسل دی چې په اړه يې د کتاب الله او صحيح سنتو دليل نه وي او په دين کې څه اصل ونه لري او دا په درې ډوله دی :

١- الله تعالى ته توسل کول په ذات د يو شخص که څه هم پيغمبر وي، صالح کس وي او يا بل څوک وي چې دوه ډوله دی :

**الف) :** دا چې توسل کوونکی له هغه څخه دعا او غوښتنه کوي، داسې دعا او غوښتنه چې هغه يوازې الله تعالى ته خاص وي او د هغه په قدرت کې وي،دا توسل شرک اکبر دی، ځکه دعا عبادت دی او عبادت يوازې الله تعالى لره دی د الله تعالى پرته بل چا ته عبادت يا بل څوک په عبادت کې شريک کول شرک دی، مشرکانو بتان الله تعالى ته واسطه کول او د هغه نه به يې غوښتنې کولې .

لقوله سبحانه وتعالى: [وَلا تَدْعُ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لا يَنْفَعُكَ وَلا يَضُرُّكَ فَإِنْ فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذاً مِنَ الظَّالِمِينَ] (يونس :١٠٦).

ژباړه: پرته له الله تعالى د بل چا عبادت مه کوه، هغه چې نشي رسولای نفعه تا ته (بلنه د هغه) او نه ضرر رسولی شي تاته (بلنه دهغه) نو که بالفرض د غيرالله عبادت وکړې نو يَقيناً ته به وې دغه وخت له ظالمانو نه .

حال دا چې مونږ ته الله سبحانه وتعالى ددې حکم نه دی کړې چې تاسې ما ته صالحين واسطه کړئ يا د انبياء څخه غوښتنې وکړئ چې زه يې درته پوره کړم بلکې مونږ ته يې حکم کړی دی چې:

[وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ] (البقرة:۱۸۶).

ژباړه: او کله چې له تا څخه زما بندګان پوښتنه وکړي، يقيناً زه (دوی ته) نژدې يم. کله چې يو دعا کوونکی ما وبولي د هغه دعا منم دوی دې (هم) زما بلنه ومني او پر ما دې ايمان راوړي ښايي چې پر سمه لار تينګ پاتې شي.

و قال الله تعالى: [وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ] (غافر:٦٠).

ژباړه: د الله (جل جلاله) ارشاد دی: له ما نه وغواړئ څو ستاسې (غوښتنې) قبولې کړم.

دوکتور محمد بن عبدالرحمن الخميس په اصول الدين عند ابی حنيفه رحمه الله ليکلي دي:

(التوسل إلى الله تعالى بذات وشخص المتوسل به سواء كان النبي صلى الله عليه وسلم أو غيره). وهو نوعان:

أن يدعو المتوسَّل به:

ذلك بأن يدعوه، ويستغيث به، ويطلب منه ما لا يقدر عليه إلا الله ولو يجعله واسطة فيما يطلبه من الله. وهذا النوع من التوسل هو من الشرك الأكبر لأنه دعاء لغير الله، والتجاء إليه في المهمات وهو من صرف العبادة لغير الله، كما قال تعالى: [وَمَنْ يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَهاً آخَرَ لا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِنْدَ رَبِّهِ إِنَّهُ لا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ] (المؤمنون:١١٧).

ژباړه: او څوک چې د الله سره بل خدای چې هيڅ دليل هم پرې نه لري راوبلي نو حساب يې له رب سره دی بې شکه چې کافران بريمن کيدای نشي.

وقال تعالى: {وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُو مِنْ دُونِ اللَّهِ مَنْ لا يَسْتَجِيبُ لَهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ} "سورة الأحقاف: الآية 5".

ژباړه: او له هغه چا لوی ګمراه (بې لارې) څوک دی چې له الله نه پرته هغه څه بلي چې تر قیامته به یې غوښتنه ونشي منلای؟ بلکې د هغوی د هغوی له بلنې نه هیڅ خبر هم نه دي.

فلم يأمرنا الله أن نستغيث بالصالحين من عباده أو ندعو أنبياءه حتى تستجاب لنا المسألة، بل قال: [وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ] (سورة غافر: ٦٠).

ژباړه: او ستاسې رب فرمايي: ما وبولی (له ما نه وغواړئ) زه به مو غوښتنې ومنم او هر څوک چې زما له عبادت نه لويي کوي ډير ژر به خوار او سپک دوزخ ته ننوځي.

**ب): په ذات رسول الله او انبياء توسل:**

په دې باره کې زمونږ مذهب او د مذاهبو راجح قول دادی چې منع دی ځکه د حضرت عمرفاروق د خلافت په دور کې وچکالي وه صحابه کرامو د جناب نبی کريم صلى الله عليه وسلم په قبر توسل ونه کړ بلکي د هغه په کاکا ابن عباس رضى الله عنه یې توسل وکړ او له هغه څخه یې وغوښتل چې د باران د پاره دعا وکړي.

صحيح البخاري یې داسې بيان کوي: « عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: رضى الله عنه: أنّه كَانَ إِذَا قَحَطُوا اسْتَسْقَى بِالْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رضى الله عنه، فَقَالَ: اللَّهُمَّ إِنَّا كُنَّا نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا فَتَسْقِينَ، اوَإِنَّا نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّنَا فَاسْقِنَا، قَالَ: فَيُسْقَوْنَ» (البخاري:١٠١٠).

ژباړه:عمر بن الخطاب رضى الله عنه روايت کوي: کله به چې وچکالي کيده حضرت عمرفاروق

رضی الله عنه به د ابن عباس د دعا په وسیله د باران غوښتنه کوله او ویل به یې: ای پروردګاره! مونږ به مخکې ستا د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په وسیله باران غوښتلو او تا به باران کولو . اوس د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په تره ابن عباس رضی الله عنه توسل کوو او ستا نه باران غواړو .راوي وايي (د ابن عباس په دعا سره به باران وريدلو) .

**آيا په ذات د جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم باندې توسل کول جايز دي ؟**

په دې باره کې د امام ابوحنيفه او امام ابو يوسف رحمهم الله قول دا دی چې داسې توسل منع دی .

قال أبوحنيفة رحمه الله «يكره أن يقول الداعي أسألك بحق فلان أو بحق أنبيائك ورسلك وبحق البيت الحرام والمشعر الحرام » (شرح العقيدة الطحاوية ص۲۳۴ , وشرح الفقه الأكبر للقاري ص ۱۹۸) .

يعنې: امام ابوحنيفه رحمه الله وايي: داسې ويل مکروه او بد دي چې دعا کوونکی وايي په حق د فلاني يا په حق د تا د انبياؤ او رسولانو او يا په حق دبيت الحرام او مشعر الحرام .

وقال أبو يوسف: "وأكره أن يقول بحق فلان أو بحق أنبيائك ورسلك وبحق البيت الحرام والمشعر الحرام"(شرح العقيدة الطحاوية ص ۲۳۴) .

يعې: او امام يوسف وايی: دا مکروه او بده ده چې وايي: چې په حق د فلان او په حق د نبی ستا او رسول ستا او بيت الحرام او مشعر الحرام .

وقد قال فيه أبو حنيفة وأصحابه: إنه لا يجوز، ونهوا عنه، حيث قالوا: لا يسأل بمخلوق ولا يقول أحد: أسألك بحق أنبيائك.

قال في " تبيين الحقائق " للزيلعي الحنفي (٦/٣١): " قال أبو يوسف: أَكْرَهُ بِحَقِّ فُلَانٍ، وَبِحَقِّ أَنْبِيَائِك وَرُسُلِك " انتهى، لأنه " لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لِأَحَدٍ عَلَى اللَّهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى جَلَّ شَأْنُهُ " ؛ كما قال الكاساني في " بدائع الصنائع " (٥/١٢٦) .

وجاء في الموسوعة الفقهية :

أَمَّا التَّوَسُّلُ بِمِثْلِ قَوْلِ الْقَائِلِ : بِحَقِّ رُسُلِك وَأَنْبِيَائِك وَأَوْلِيَائِك ، أَوْ بِحَقِّ الْبَيْتِ فَقَدْ ذَهَبَ أَبُو حَنِيفَةَ وَأَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ إِلَى كَرَاهَتِهِ . قَالَ الْحَصْكَفِيُّ : لأَنَّهُ لا حَقَّ لِلْخَلْقِ عَلَى اللَّهِ تَعَالَى (١٤موسوعة الفقهية/١٦٠ ).

ابن تيميه رحمه الله وايي: کچیرې څوک ووايي زه تا ته ستا د نبی په روی سوال کوم او ددې څخه يې داسې اراده او نيت وي چې: زه تا ته سوال په روی د هغه ايمان چې ستا په نبی يې لرم او په روی د محبت چې ستا د نبی سره يې لرم او يا داسې نور، نو دا جايز او په دې کې څه اختلاف نشته نو که څوک دا اراده ولرې څه باک نلري، او د سلفو د توسل همدا معنی ده وروسته د هغه د وفات څخه لکه څنګه چې د ځينو صحابه او تابعينو او امام احمد او نورو څخه نقل شوی دی، نو دا حسن او په دې مسئله کې څه اختلاف نشته . مګر زمونږ په زمانه کې ډير خلک ددې معنی او مقصد اراده نلري .

وقال شيخ الإسلام ابن تيمية رحمه الله " لو قيل: يحمل قول القائل أسألك بنبيك محمد على أنه أراد: أني أسألك بإيماني به وبمحبته

وأتوسل إليك بإيماني به ومحبته ونحو ذلك؟ وقد ذكرتم أن هذا جائز بلا نزاع؟ قيل: من أراد هذا المعنى فهو مصيب في ذلك بلا نزاع، وإذا حمل على هذا المعنى كلام من توسل بالنبي صلى الله عليه وسلم بعد مماته من السلف - كما نقل عن بعض الصحابة والتابعين وعن الإمام أحمد وغيره - كان هذا حسنا ؛ وحينئذ: فلا يكون في المسألة نزاع .
ولكن كثير من العوام يطلقون هذا اللفظ، ولا يريدون هذا المعنى ؛ فهؤلاء الذين أنكر عليهم من أنكر.
وهذا كما أن الصحابة كانوا يريدون بالتوسل به: التوسل بدعائه وشفاعته، وهذا جائز بلا نزاع ؛ ثم إن أكثر الناس في زماننا لا يريدون هذا المعنى بهذا اللفظ " انتهى من " قاعدة جليلة " (ص١١٩).

همدارنګه موسوعة الفهية ليکي :
ذَهَبَ جُمْهُورُ الْفُقَهَاءِ ( الْمَالِكِيَّةُ وَالشَّافِعِيَّةُ وَمُتَأَخِّرُو الْحَنَفِيَّةِ وَهُوَ الْمَذْهَبُ عِنْدَ الْحَنَابِلَةِ ) إِلَى جَوَازِ هَذَا النَّوْعِ مِنَ التَّوَسُّلِ سَوَاءٌ فِي حَيَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ بَعْدَ وَفَاتِهِ (موسوعة الفقهية ١٤/١٦٠) .

کومو فقهاؤ کرام چې د توسل اجازه ورکړي ده هغه په ایمان او تصدیق ، محبت ، شفاعت د رسول الله صلی الله علیه وسلم دی .
مګر په دي مسئله باندې عامو خلکو پوهول مشکل دي ځکه چې اکثرو عامو خلکو مقصد ایمان او محبت نه وي بلکي مستقیماً په ذات د رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې توسل کوي چې ددې څه ثبوت نشته .

داسې توسل كول چې پيغمبر يا ولى يا كوم پير حاضر ناظر ګڼي چې فلانئ ولي، يا پيره را ورسيږه په دې نيت چې هغه ما ته رارسيږي يعنى زما سره مدد كوي حرام دى (فتاوي دارالعلوم ديوبند ج ٢ ص ١٥٣) .

ځكه مونږ او تاسې په هر لمانځه كې دا وايو چې [إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ] ،يعنې: خاص تاته عبادت كوو او خاص له تا څخه مدد غواړو .

پس د امام ابى حنيفه ، امام ابو يوسف او امام محمد رحمهم الله په قول زمونږ عمل دى ځكه د خالصې عقيدې تقاضا همدا ده او بل ددې كار اجازت **سد الذرائع** ( د حرامو طرف ته د بلنې) سبب ګرځي .

**٢- الله تعالى ته توسل كول په حق د فلانې :**

الله تعالى ته توسل كول په حق د فلان يا په روى د فلاني، چې وايي اى الله ما په حق د فلاني وبښه او ما ته د فلاني په روى دا شى راكړه او داسې نور دا ډول توسل په دين كې اصل نلري، امام ابوحنيفه رحمه الله ددې ډول توسل څخه منع فرمايلي ده او وايي :

دا چې يو مسلمان په دعا كې وايي: اللهم انى اسألک بحق فلان عليک او بجاهه عندک ان تغفرلي .

(اى الله زه د تانه سوال كوم په حق د فلان او يا په روى د فلان هغه تاته پيش كوم چې ما وبښي .

امام ابوحنيفه رحمه الله وايي: داسې ويل بد دي چې دعا كوونكى وايي په حق د فلاني يا په حق د تا د انبياؤ او رسولانو او يا په حق بيت الحرام او مشعر الحرام .

همدارنګه امام ابو حنيفه د ابو يوسف په نقل روايت سره وايي .

د هيڅا د پاره نه ښايي چې د الله پرته د بل چا څخه څه وغواړي (يا په غوښتلو کې څوک واسطه کړي)، او دا بده چې ووايي: په عزت د عرش ستا .

او امام يوسف وايى: دا بده ده چې وايي: چې په حق د فلان او په حق د نبى ستا او رسول ستا او بيت الحرام او مشعر الحرام .

جاء في اصول الدين عند ابى حنيفه :

التوسل إلى الله تعالى بحق فلان أو جاهه ونحو هذا: منع الإمام أبوحنيفة رحمه الله تعالى هذا التوسل، وصفته أن يقول المسلم في دعائه: "اللهم إني أسألك بحق فلان عليك أو بجاهه عندك أن تغفر لي".

قال أبو حنيفة: "يكره أن يقول الداعي أسألك بحق فلان أو بحق أنبيائك ورسلك وبحق البيت الحرام والمشعر الحرام". (العقيدة الطحاوية ص ٢٣٤؛ وشرح الفقه الأكبر للقاري ص ١٩٨).

وقال بشير بن الوليد: حدثنا أبو يوسف قال: قال أبو حنيفة: "لا ينبغي لأحد أن يدعو الله إلا به، وأكره أن يقول: بمعاقد العز من عرشك.

وقال أبو يوسف: "وأكره أن يقول بحق فلان أو بحق أنبيائك ورسلك وبحق البيت الحرام والمشعر الحرام (شرح عقيدة الطحاوية ٢٣٤) .

(اصول الدين عند ابى حنيفه / دوكتور محمد عبدالرحمن الخميس) .

## تبرک

**د تبرک تعریف :**

تبرک د برکت له کلمې څخه اخیستل شوی چې زیادت او کثرت او طلب د خیر ته وایي .

چا به چې نوی واده وکړ رسول الله صلی الله علیه وسلم به هغه ته د مبارکۍ داسې الفاظ ویل: «بارك الله لكما، وبارك عليكما، وجمع بينكما في خير».

**د تبرک انواع :**

تبرک په مشروع (روا) او غیر مشروع (نارو) ویشل شوی دی .

**اول- تبرک مشروع :**

د قرآن او سنتو د نصوصو څخه دا څرګندیږي چې تبرک او برکت د الله تعالی د جانبه دی، مسلمان لره ښایي چې دا عقیده ولري چې برکت د الله تعالی د طرفه دی او د هغه (جل جلاله) په واک کې دی او د مخلوق له جانبه نه دی .

داسې ویل غلط دي چې څوک وایي: ته دې برکتي شې، ستا اولاد دې برکتې شي، بلکي داسې به وایي: الله تعالی دې ستا او ستا اولاد برکتي وګرځوي یا داسې: الله دې ستا او ستا اولاد مبارک کړي .

**د تبرک د مشروعیت دلائل :**

الله سبحانه وتعالی ځنې شیان مبارک ګرځولی دي.

لکه د هغه (جل جلاله) کتاب قرآنکریم : [كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ] (الأنعام: ۹۲).
ژباړه: (او دا قرآن) کتاب مونږ نازل کړی دی مبارک (له برکت نه ډک).
بیت الله شریف او د قدر شپه، لقوله سبحانه وتعالی : [إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا] (آل عمران: ۹۶).
ژباړه: هغه لومړني خونه چې د خلکو لپاره ټاکل شوی ده په مکه کې ده، هغه مبارکه (د برکت نه ډکه ده).
[إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ] (الدخان: ۳).
ژباړه: مونږ قرآن په یوه مبارکه شپه کې نازل کړی.
پس برکت ټول د الله تعالی د جانبه دی او د الله فضل او کرم دی هغه چې څنګه وغواړي هسې کولای شي دا چې ځینې شیان یې برکتي ګرځولی دا یې فضل او کرم دی.
په ځینو شیانو کې چې برکت دی هغه د قرآن او سنتو په نصوصو باندې ثابت دی لکه: باران برکت دی، د زم زم اوبه برکت دی.
**پوښتنه:** دا چې الله (جل جلاله) ځینې شیان په برکت سره خاص کړي دي نو په هغه کې څه ډول تبرک او برکت دی؟
**ځواب:** په دغو شیانو کې تبرک فرق کوي په ځینو کې معنوي او په ځینو کې ذاتي تبرک دی.

مثال..
۱- **بیت الحرام:** په مسجد الحرام کې معنوي برکت دی، یعنې برکت ددې جانبه دی چې په هغه کې یو لمونځ کول د یو لکو لمونځونو ثواب لري، نو دغه د ثواب زیادت یې برکت دی او همدارنګه د طواف فضیلت یې برکت دی، نو په

مسجد الحرام کې چې کوم برکت دی هغه معنوي برکت دی، ذاتي برکت نه دی، دا چې خلک د هغه دیوالونه، غولی او نور مسحه کوي په هغه باندې دستمالونه موښي او هغه دستمالونه بیا برکتي ګڼې په هغه کې هیڅ برکت نشته بلکې برکت په عبادت کې دی .

**٢- د زم زم اوبه:** د زم زم په اوبو کې ذاتي برکت دی چې د هغه څښل دي، طعام دی او د مرضونو شفا ده .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «إنها مبارکة إنها طعام طعم» (رواه المسلم) .

ژباړه: د زم زم اوبه مبارکې دي او دا اوبه خوندوره غذا او خوراک دی .

او په بل روایت کې راځي: « وشفاء سقم» (او مرض لپاره شفاء ده) .

مګر د زم زم په اوبو کې معنوي برکت نشته .

**٣- حجرة اسود:** په حجرة اسود کې معنوي برکت دی ځکه د هغه په مسحه کولو سره د ګناهونو بښنه کیږي لکه په حدیث شریف چې راغلي دي: «إن مسح الحجر الأسود والرکن الیماني یحطان الخطایا حطا» (رواه أحمد و صحیح الجامع)

**٤- لیلة القدر (د قدر شپه):** په لیلة القدر کې معنوي برکت دی چې په دغه شپه عبادت کول د زرو میاشتو د عبادت برابر ثواب لري .

**٥- اشخاص:** الله تعالی په ځینو اشخاصو کې برکت اچولی او هغوی یې مبارک ګرځولي دي په اشخاصو کې څه قسم برکت دی ؟

په اشخاصو کې معنوي برکت دی، مسلمان مبارک دی ځکه د هغه دعا کول بل مسلمان ته، د هغه نصیحت، امر بالمعروف او نهی عن المنکر او علم یې، د خیر په کار کې مرسته

کول یې د بل مسلمان لپاره منفعت دی چې دا منفعت معنوي برکت دی .

یعنې په ټولو صالحو مسلمانانو کې معنوي برکت دی نه ذاتي چې دا برکت د نصیحت، دعا، علم ... له وجې دی .

او دا برکت د اسلام او ایمان له وجې دی، د الله تعالی او د هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د متابعت له وجې دی .

پس ویلای شو چې مشروع تبرک په دری قسمه دی :

تبرک دیني، تبرک دنیوي او تبرک دیني او دنیوي .

مثلاً :

قرآنکریم کې دیني او دنیوي برکت دی .

دیني برکت یې تلاوت دی چې د هر حرف په تلاوت سره لس نیکۍ دي، په هغه باندې عمل کول او بل کس ته هدیه کول دي .

دنیوي برکت یې شفاء ده، علوم دی لکه: علم طب، علم فلق چې عامو انسانانو حتی کافران ته یې ګټه رسیدلی ده ځکه د قرآنکریم څخه یې علمي انکشافات کړي دي.

مګر په قرآنکریم کې ذاتي برکت نشته لکه: د زم زم په اوبو کې چې وو.

یعنې د قرآن برکت د هغه تلاوت، په هغه باندې عمل کول دي .

خو دا یې برکت نه دی چې قرآن ته ښو غلافه وکړه په هغه کې یې تاو کړه او د کور په کوم دیوال کې یې کیږده او بیا وایه چې زه په کور کې قرآن لرم . ....

د قرآن اصلي مقصد په هغه باندې عمل کول دي، د قرآن تلاوت او د هغه احترام کول فضیلت دی .

**ممنوع (نا روا) تبرک :**

ناروا تبرک هغه تبرک دی چې په اسلامي شریعت کې هیڅ اصل نلري، د داسې شي څخه د خیر غوښتل او هغه خیر او برکت ګڼل چې په اسلامي شریعت کې اصل ونه لري، اسلامي شریعت منع کړي دي .

لکه: د یوې خاصې چینې مبارک ګڼل او په هغه کې د خلکو لمبل چې ددې چینې اوبه مبارکې دي او شفا ورکوونکې دي .

د ځینو قبرونو د خاورو او کاڼو مبارک ګڼل، د قبر د خاورو خوړل چې هغه د فلانې فلانې مرض درملنه ده .

د خاصې ونې، نبات، غره او نور مبارک ګڼل او داسې نور .

دا هر څه د جاهلیت د زمانې میراث دی کوم چې مشرکانو به تر سره کول، پخپلو لاسونو جوړ کړې بتان، او ځنې کاڼې او ونې به یې مبارک بلل، ځینو قبرونو ته به یې سجدې کولې او د هغوی څخه به یې د خیر تمه او عقیده لرله .

الله سبحانه وتعالی فرمایي :

[ أَفَرَأَيْتُمُ اللَّاتَ وَالْعُزَّى * وَمَنَاةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرَى * أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَى * تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَى] (النجم: ١٩- ٢٢).

ژباړه: آیا تاسې د لات او عزا په هکله فکر کړی دی؟ او هم د هغه دریم منات نومې په هکله، آیا ستاسې ځامن د الله لورګانې دي؟ دا خورا کوږ او بې انصافه ویش دی .

اللّات: یو قسم کاڼی وو، مناة هم یو قسم کاڼې وو او العزی یو ونه وه .

ایا مشرکان په دې عقیده وو چې لات، منات او عزی الله دی ؟

ځواب: نه، لکن هغوی په دې وجه د هغو عبادت کولو چې په هغه کې نفع او برکت دی .

مشرکانو په اول کې ځينې شيان او خپل مړه شوی صالح کسان مبارک ګڼل او وروسته وروسته يې د هغوی عبادت هغوی ته سجده کول او د هغوی بلل پيل کړل .

ترمذي او مسند احمد د صحابه کرامو واقعه نقل کوي چې: مونږ (صحابه) د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره حنين ته لاړو، د مشرکينو د دور په باره کې مو خبرې وکړې، چې د مشرکينو لپاره يو ونه وه چې هغوی به مبارکه بلله په هغه کې به يې خپلې وسلې ځړولې او دغه ونه (ذات انواط) نومېده مونږ په هغه باندې تير شو، نو مونږ رسول الله ته وويل: زمونږ د پاره هم (ذات انواط) وټاکه لکه څنګه چې د مشرکانو د پاره وه، رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «الله أکبر! إنها السنن، قلت والذي نفسي بيده، کما قالت بنو إسرائيل لموسی [اجْعَل لَّنَا إِلَهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ] (الأعراف: ١٣٨)، لترکبن سنن من کان قبلکم» (الترمذي ٢١٨٠ و قال حسن صحيح و احمد ٢١٣٩٠) .

ژباړه: الله اکبر (د تعجب لپاره دی، يعنې الله لوی دی او د هر قسم شرک څخه پاک او منزه دی)، دا د هغوی طريقه ده د (مشرکينو)، قسم مې دې په هغه ذات وي چې زما نفس يې په واک کې دی تاسې ما ته داسې څه وايئ لکه بنی اسرائيلو چې موسی ويل [مونږ ته هم د دغو خلکو پشان خدای وټاکه، موسی وويل: رښتيا هم چې تاسې ناپوهه قوم يئ]، نو تاسې د مخکې خلکو (مشرکينو) طريقې عملي کول غواړئ .

دا حديث شريف د اسلامي امت د پاره لوی او ستر درس دی، چې داسې شي مبارک ګڼل چې د هغه په شريعت کې ثبوت نه وي لکه مخکې مو چې بيان کړل، د مشرکينو او جاهليت ميراث وي او

د هغه څخه د خير او منفعت، دفع ضرر اراده لري مطلق حرام او دا عمل شرک دی .
نور په همدې حديث شريف باندې بسوالی کوم .
الله سبحانه وتعالی دې مونږ د هر ډول شرک، بدعت او خرافاتو څخه چې د اسلامي شريعت خلاف وي و ساتي .
(عقيده المستوي الاول - الاكاديمية الاسلامية - دوكتور سهل العتيبي)

### د غير الله لپاره ذبحه

د غير الله د پاره ذبح کول شرک دی ځکه د حيوان ذبحه کول عبادت دی او د غير الله لپاره ذبح کول د غير الله عبادت کول دي چې دا عمل شرک دی .
لقوله سبحانه وتعالی: [قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ * لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ] (الأنعام: ۱۶۲، ۱۶۳)
ژباړه :ووايه (ای محمده!) چې زما لمونځ زما قرباني زما ژوند او زما مرګ يوازې د هغه الله لپاره دی چې رب د عالميانو دی . شريک نلري يو دی په همدې کار ما ته امر شوی دی او له هر چا زه لومړی سر ټيټوونکی يم .
رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«لعن الله من ذبح لغير الله» (رواه مسلم والنسائي وأحمد).

ژباړه: د الله تعالی لعنت دی پر هغه چا څوک چې د غیر الله د پاره ذبحه کوي .

**ذبح په اصل کې په څلور قسمه ده :**

١- د الله سبحانه وتعالی د تقرب لپاره د پاک حیوان ذبحه کول لکه: د لوی اختر قرباني، د حج قرباني، د فقراء او مساکینو لپاره صدقه کول چې دا ډولونه د الله تعالی عبادت دی .

٢- د مېلمنو لپاره د څاروي ذبحه کول او همدارنګه د واده د ولېمې او د عقیقې لپاره د حیوان ذبح چې حکم یې مستحب او سنت دی چې دا هم عبادت دی.

٣- د څاروي ذبح کول د هغه د غوښو خرڅول د تجارت په نیت لکه قصابي او نور .

٤- د مخلوق د تقرب او نږدېوالی لپاره ذبحه کول چې دا شرک اکبر دی ځکه ذبحه عبادت دی د الله تعالی پرته بل چاته ذبحه کول شرک دی او د داسې څاروي غوښه مرداره ده .

(موقع الدرر السنية، موسوعة القعيدية - الذبح لغير الله)

## شرکي ذبحې هم څلور قسمه دي

### اول قسم :

دا چې د غیر الله لپاره ذبح کوي، او په هغه باندې د غیر الله نوم اخلي لکه د کوم ولي، ساحر، کاهن او نورو، نو بې شکه چې دا ذبح شرک اکبر دی ځکه د الله تعالی پرته د بل چا عبادت شو .

### دوهم قسم:

دا چې په اصل کې د غیر الله لپاره ذبح کوي مګر په هغه باندې د الله نوم اخلي دا هم شرک دی، داسې چې د ساحر او کاهن په خبره خاص څاروی یا مرغه په خاص رنګ او خاصو صفاتو او خاص ځای کې ذبح کړي که څه هم په هغه باندې د الله تعالی نوم واخلي او د قبلې په طرف یې

ذبح کړي دا هم شرک دی، دا همغه د جاهلیت د زمانې د بتانو عبادت او تعظیم ته ورته د غیر الله عبادت دی چې هغوی به د خپلو بتانو لپاره ذبحې کولې .

**دريم قسم:**

دا چې د غیر الله لپاره ذبح وکړي په هغه باندې د الله د نوم سره د غیر الله نوم هم واخلي لکه د ولي یا ساحر او کاهن نو دا هم شرک شو .

**څلورم قسم :**

دا چې ذبح د الله لپاره کوي مګر په هغه باندې د غیر الله نوم اخلي کچېرې د تعظیم لپاره وي شرک اکبر دی نو دا ذبح د غیر الله لپاره شوه، لقوله سبحانه وتعالی: [وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ] (البقره :۱۷۳) .

ژباړه: او هر هغه حلال کړی شوی چې د الله تعالی د (نوم) پرته په بل نوم ذبحه شي .

**چې دا ډول ذبحه په دوه ډوله ده :**

الف): که د غیر الله تقریب (نږدېوالی) او تعظیم (احترام) یې مقصد وي شرک اکبر دی .

ب): کچېرې د رئیس، پیر، او بل کس د خوشحاله کولو او احترام لپاره د هغه په پښو کې ذبح وشي، وینې و بهول شي او څاروی همالته پرېښودل شي او د هغه څخه استفاده ونشي دا عمل شرک شو او که د مېلمستیا او طعام په نیت وي او د هغه نه د طعام استفاده وشي باک نلري .

جاء في حایشه ابن عابدین :

لَوْ ذَبَحَ لِقُدُومِ الأَمِيرِ وَنَحْوِهِ مِنَ الْعُظَمَاءِ (تَعْظِيمًا لَهُ) حَرُمَتْ ذَبِيحَتُهُ، وَلَوْ أَفْرَدَ اسْمَ اللَّهِ تَعَالَى بِالذِّكْرِ ؛ لأَنَّهُ أَهَّلَ بِهَا لِغَيْرِ اللَّهِ. وَلَوْ ذَبَحَ لِلضَّيْفِ لَمْ تَحْرُمْ ذَبِيحَتُهُ لأَنَّهُ سُنَّةُ الْخَلِيلِ

عَلَيْهِ السَّلَامُ، وَإِكْرَامُ الضَّيْفِ تَعْظِيمٌ لِشَرْعِ اللَّهِ تَعَالَى، وَمِثْلُ ذَلِكَ مَا لَوْ ذَبَحَ لِلْوَلِيمَةِ أَوْ لِلْبَيْعِ.

وَالْفَرْقُ بَيْنَ مَا يَحِلُّ وَمَا يَحْرُمُ: إِنْ قَصَدَ تَعْظِيمَ غَيْرِ اللَّهِ عِنْدَ الذَّبْحِ يَحْرُمُ، وَقَصْدُ الإِكْرَامِ وَنَحْوُهُ لا يَحْرُمُ (حاشيه ابن عابدين ۱۹۶/۵).

کچېږي د امير يا نورو مشرانو مخې ته يا پښو کې ذبح وشي د هغه د تعظيم او احترام په نيت که څه د الله نوم ورباندې ياد شوى وي دا ذبحه مرداره ده ځکه د غير الله په نوم ذبحه شوى، مګر که د مېلمه لپاره وي پاک نلري ځکه دا ابراهيمي سنت دي، او د مېلمه اکرام او عزت د شعائرالله عزت دى او په مثال ددې د ولېمې او يا بيع او قصابى ذبحه.

ددې ذبحې په حلالوالى او حراموالى کې دا فرق دى چې کچېږي په ذبح کې تعظيم د غير الله وي حرام او قصد يې مېلمستيا وي نه حراميږي (حايشه ابن عابدين).

د مطلب خلاصه دا چې ذبح کول او په شرعي طريقه د حيوان د وينې بهول عبادت دى، ذبح به يوازې الله تعالى لره وي او د هغه (جل جلاله) نوم به ورباندې اخيستل کيږي.

کچېږي ذبح په هر بل مقصد تر سره شي يا د الله تعالى پرته بل نوم ورباندې واخيستل شي يا د الله تعالى د نوم سره بل نوم واخيستل شي دا عبادت نه بلکې شرک دى.

جاء في الموسوعة الفقهية:

لا يجوز الذّبح باسم رسول الله، ولا باسم الله ومحمّدٍ رسول الله - بالجرّ - حيث يجب تجريد اسم الله سبحانه وتعالى عن اسم غيره في هذا الموطن لقوله تعالى: {وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ} الآية، وقول عبد الله بن مسعودٍ رضي الله عنه:

جرّدوا التّسمية عند الذّبح، ولأنّ هذا إشراك اسم الله عزّ شأنه واسم غيره. (الموسوعة الفقهية) .

ژباړه: د رسول الله صلى الله عليه وسلم په نوم ذبح كول حرام دي او د الله او محمد رسول الله په نوم ذبحه كول حرام دي، ذبح به يوازې د الله تعالى په نوم وي نه دا چې د الله د نوم سره غير الله ذكر شي، لقوله سبحانه وتعالى: {وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللهِ بِهِ} ، او قول د عبدالله بن مسعود رضى الله عنه: په ذبحه كې د الله د نوم سره د غير الله د نوم پيوسته كول شرك دى ځكه دا د الله عز و شانه د اسم سره د بل اسم شريكول دي .

**د غير الله د ذبحې كولو ډير صورتونه دي :**

لكه ساحر او كاهن چې د مريض څخه په خاصو صفاتو څاروى يا كوم مرغه غواړي چې په فلاني رنګ، فلاني صفت او د فلاني ځاى څاروى به وي كه څه هم په هغه باندې د الله نوم واخيستل شي دا ذبح د غير الله لپاره شو .

او ځنې كسان ذبح كوي او د څاوري وينې د كور په دروازه او موټر باندې تويوي ترڅو مبارك وګرځي، دا ټول دجاهليت د دور شركي اعمال دي .

مشركينو به د پيريانو د نږديوالى لپاره داسې كول تر څو هغوى ته ضرر ونه رسوي .

مګر كه د مېلمستيا لپاره وي باک نلري بيا په دې منع كې نه راځي، منع دا ده چې د هغه وينه په خاص ځاى كې تويوي لكه د كور په دروازه، د ناوې په موټر وغيره د تبرک لپاره دا كار حرام د جاهليت د زمانې ميراث دى .

**د غير الله لپاره ذبح مرداره ده :**

هر قسم ذبح چې د الله تعالى پرته په هر نامه او مقصد ذبح شوى وي هغه مرداره ده او خوړل يې حرام دي [بدائع الصنائع، للكاساني (٧٥/٥)، وحاشية ابن عابدين (٤٢٨/٩)] .

لقوله سبحانه وتعالى :[وَلا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ] (الأنعام: ١٢١) .

ژباړه: او هغه څه مه خورئ په كوم باندې چې د الله تعالى نوم نه وي ياد شوى .

**په ذبح كې د غير الله لپاره حصه وركول:**

كچېرې څوک اصلاً د الله تعالى لپاره ذبح كوي د الله نوم وربانديې يادوي مگر مطلب يې دا وي چې خلک يې صفت وكړي نو دا شرک اصغر (رياء) شو، او د ريا څخه ځان ساتل پكار دي چې تفصيل يې مخكې تير شو .

**د غير الله د پاره نذر**

**ولې د غير الله لپاره نذر ؟**

ځكه نذر عبادت دى، لقوله سبحانه وتعالى : [يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا] (الإنسان: ٧)

ژباړه: (د الله تعالى نيک بنده گان هغه دي) چې په نذرونو وفا كوي (نذرونه پوره كوي) او له هغې ورځې څخه ډاريږي چې شر به يې په هر لور خور وي .

وقوله: [وَمَا أَنفَقْتُم مِّن نَّفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُم مِّن نَّذْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُهُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ] (البقرة: ٢٧٠) .

ژباړه: تاسې چې هر څيز خيرات كړئ او يا مو نذر منلى نو بې شكه چې الله پاک ته معلوم دى او د ظالمانو هيڅ ملاتړ نشته .

**ندز څه ته وايي :**

نذر داسې عبادت دى چې بنده يې پر خپل ځان واجب گرځوي بلكې د الله تعالى د طرف څخه نه وي وربانديې واجب شوى .

مثلاً يو كس وايي: كه زه د مرض څخه روغ شوم دومره صدقه وركوم، يا دومره ورځې روژه نيسم ...

نذر د مباح عمل د پاره مباح مګر په هغه باندې وفا کول واجب دی او د حرام کار سره نذر منل حرام دي او د غير الله لپاره نذر منل شرک دی .

والنذر عبادة من العبادات، لا يجوز أن يصرف لغير الله تعالى، فمن نذر لمخلوق كأن يقول: لفلان علي نذر أن أصوم يوماً، أو لقبر فلان علي أن أتصدق بكذا، أو إن شفي مريضي أو جاء غائبي للشيخ فلان علي أن أتصدق بكذا، أو لقبره علي أن أتصدق بكذا، فقد أجمع أهل العلم على أن نذره محرم وباطل، وعلى أن من فعل ذلك قد أشرك بالله تعالى الشرك الأكبر المخرج من الملة، لأنه صرف عبادة النذر لغير الله، ولأنه يعتقد أن الميت ينفع ويضر من دون الله، وهذا كله شرك (درالمحتار مع حاشيه ابن عابدين ۵/۱۹۶-۱۹۷، البحر رائق ۲/۳۲۰، مجموع الفتاوى ۱/۲۸۶).

ژباړه: نذر د عباداتو څخه يو عبادت دی، رواه نه ده چې هغه د غير الله د پاره وشي، پس که چا نذر وکړ د مخلوق لپاره داسې چې ووايي: د فلاني لخوا په ما نذر دی چې يو ورځ به روژه نيسم، او د فلاني قبر لپاره چې دا رنګه صدقه به کوم، او کچېرې زما مرض ښه شي او زما مسافر راشي نو زه به د فلاني شيخ يا پير لپاره دا رنګه صدقه کوم، او د قبر لپاره چې دا رنګه صدقه به کوم، پس په يقين سره اجماع د علماؤ ده چې دا ډول نذر حرام او باطل دی، او چا چې دغه کار وکړ هغه د الله تعالى سره شرک اکبر چې د ملت اسلام څخه د وتلو سبب دی اختيار کړ، ځکه هغه د نذر عبادت د غير الله لپاره کړی، او ځکه چې هغه عقيده لري چې مړی نفع رسوي او ضرر دفع کوي پرته له الله تعالى څخه، او دا ټول شرک دی .

همدارنګه ابن عابدين وايي :

واعلم أن النذر الذي يقع للأموات من أكثر العوام وما يؤخذ من الدراهم والشموع والزيت ونحوها إلى ضرائح الأولياء الكرام تقرباً إليهم فهو بالإجماع باطل وحرام. قوله باطل وحرام لوجوه :منها أنه نذر لمخلوق، والنذر للمخلوق لا يجوز؛ لأنه عبادة، والعبادة لا تكون لمخلوق، ومنها أن المنذور له ميت، والميت لا يملك، ومنها أنه ظن أن الميت يتصرف في الأمور دون الله تعالى، واعتقاده ذلك كفر (حاشيه ابن عابدين ۴/۴۳۹) .

ژباړه: او پوه شه چې د مړو لپاره نذر اکثره عوام تر سره کوي چې پیسې، شمع، غوړي او نور اخلي او هغه د اولیاء کرامو د نردې والی لپاره د هغوی په قبرونو ږدې دا په اجماع سره حرام او باطل عمل دی .

باطل او حرام په دې وجه دی چې دا نذر د مخلوق لپاره دی او د مخلوق لپاره نذر کول حرام دي، ځکه نذر عبادت دی او عبادت د مخلوق لپاره نه وي، دا چې مقصد یې مړی وي نو مړی هیڅ واک نلري (د نفعې او دفع ضرر هیڅ واک نلري) او که څوک په دې عقیده وي چې مړی د الله تعالی پرته متصرف دی نو دا عقیده لرل کفر دی (ابن عابدین) .

لا حول ولا قوة الی بالله علی العظیم

## الاستعاذة بغير الله (غیر الله ته پنا وړل)

### فرق په مابین د استعاذة او استعانه

### اول ـ استعانه او د هغې اقسام :

استعانه مدد غوښتلو ته وایي چې لاندې اقسام لري :

۱- د الله سبحانه وتعالی څخه مدد غوښتل چې بنده د خپل رب سبحانه وتعالی څخه په خشوع

او خضوع سره مدد غواړي او دا مدد غوښتل عبادت دی، لقوله سبحانه وتعالی :[إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ] (خاص تاته عبادت کوو او خاص له تا څخه مرسته غواړو)، او دا عبادت صرف الله تعالی لره دی .

٢- د الله سبحانه وتعالی د مخلوق سره مشروع مدد کول یا د هغوی نه مدد غوښتل لکه: د خپل مسلمان ورور سره د خیر، مشروع او مباح کار کې مدد کول او یا د هغه څخه د خیر او مشروع کار کې مدد غوښتل کوم چې د بنده پر وس پوره وي چې دا کار موجب د خیر او ثواب دی، لقوله سبحانه وتعالی:[وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى] (المائده) .

ژباړه: په نیکی او پرهیزکاری کې یو له بله مرسته وکړئ .

د ابی هریرة رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «من نفس عن مؤمن كربة من كرب الدنيا، نفس الله عنه كربة من كرب يوم القيامة .ومن يسر على معسر، يسر الله عليه في الدنيا والآخرة. ومن ستر مسلما، ستره الله في الدنيا والآخرة. والله في عون العبد ما كان العبد في عون أخيه. ومن سلك طريقا يلتمس فيه علما، سهل الله له به طريقا إلى الجنة. وما اجتمع قوم في بيت من بيوت الله، يتلون كتاب الله، ويتدارسونه بينهم، إلا نزلت عليهم السكينة، وغشيتهم الرحمة وحفتهم الملائكة، وذكرهم الله فيمن عنده. ومن بطأ به عمله، لم يسرع به نسبه » (المسلم ٢٦٩٩).

ژباړه: څوک چې په دنیا کې د یو مسلمان نه پریشاني لرې کړي الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغه نه پریشاني او تکلیف لرې کړي، څوک چې اړو اوتنګ لاسو سره کومک وکړي الله تعالی به په

دنیا اوآخرت دواړو کې د ده سره آساني وکړي، او څوک چه د مسلمان عیب پټ کړي الله تعالی به په دنیا او آخرت دواړو کې د ده په عیبونو پرده واچوي، الله تعالی د خپل بنده تر هغه وخته امداد اومرسته کوي تر څو چه بنده سره د مسلمان ورور مرسته کوي.

مګر د شر او ګناه په کار کې یو د بل سره مدد کول حرام دي، لقوله سبحانه وتعالی :
[وَلا تَعَاوَنُوا عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ] (المائده) .
ژباړه: او (هیڅکله) د ګناه او نافرمانی په کار کې یو له بله مرسته مه کوئ.

۳- د حاضر مخلوق سره په داسې کار کې مرسته کول کوم چې د انسان په وس پوره نه وي باطل او لغو دی لکه: د یو شي پورته کول چې زیات ثقیل وي او پورته کول یې د انسان له وس څخه بهر وي .

۴- د نیکو اعمالو په وسیله د الله تعالی څخه مدد غوښتل، لقوله سبحانه وتعالی: [یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُواْ اسْتَعِینُواْ بِالصَّبْرِ وَالصَّلاَةِ إِنَّ اللّهَ مَعَ الصَّابِرِینَ] (البقرة:۱۵۳).
ژباړه: ای مؤمنانو! په صبر او لمانځه سره کومک وغواړئ بې شکه چې الله پاک د صبر کوونکو سره دی .

۵- د مړو څخه مدد غوښتل او همدارنګه د غایب ژوندي څخه مدد غوښتل شرک دی ولي شرک دی ؟

ځواب: ځکه چې د مړي څخه مدد غوښتل دا معنی لري چې هغه العیاذ بالله حاضر او ناظر دی او د دعا کوونکي غږ اوري چې دا هیڅ اصل نلري او شرکي عقیده ده او دا هماغه د جاهلیت د وخت د بتانو عبادت ته ورته شرکي عبادت دی .

همدارنګه دژوندي غایب کس څخه مدد غوښتل چې مدد غوښتونکی په یو ښار کې وي او شیخ یا پیر یا ولی یا بل کس پر بل ښار کې وي او د ده مدد او کومک ته هیڅ لاس رسی نلري نو د دغه غایب کس څخه مدد غوښتل دوې معناوې لري .

الف): هغه کس العیاذ بالله متصرف ګڼې چې دا عقیده لرل شرک دی .

ب): هغه کس د ولایت څښتن ګڼې چې ولایت د ولي په اختیار کې نه وي او نه هم په غیبو پوهیږي چې د ده په احوالو پوه شي چې دا ډول اعتقاد لرل شرک دی .

**استعاذه (پناه وړل) :**

استعاذه پناه غوښتلو ته وایی چې لاندې اقسام لري :

١- د هر قسم شر او آفت او همدارنګه د شیطان د وسواسو څخه پر الله سبحانه وتعالی پناه غوښتل، لقوله سبحانه وتعالی :[قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ، مِن شَرِّ مَا خَلَقَ...] .

ژباړه: (ووایه ای محمده!) زه د تیارو څیروونکی سهار په رب پناه غواړم، د هغه ټولو پیدا کړو څیزونو له شر څخه .

او الله تعالی فرمايي: [وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ] (الأعراف: 200) .

ژباړه: او که د شیطان له لورې کومه وسوسه درته را وړاندې شوه نو له الله پاک نه پرې پنا وغواړه .

٢- د الله سبحانه وتعالی په عظمت او کلمات د هر شر څخه پر الله تعالی پناه غوښتل، لقوله رسول الله صلی الله علیه وسلم: «من نزل منزلاً فقال: أعوذ بكلمات الله التامات من شر ما خلق، لم یضره شيء حتی یرتحل من منزله ذلك» رواه مسلم.

ژباړه: څوک چې پخپل کور کې واړوي داسې به وايي: پناه غواړم د الله تعالی په تامهء کلماتو له هغه شر څخه چې پيدا شوی دی، هغه ته به څه شی ضرر ونه رسوي تر څو د هغه کور څخه کډه وکړي.

۳- ژونديو ته پناه وړل چې هغوی د پناه اخيستلو توان ولري داسې جايز دي لکه د ژونديو څخه مرسته غوښتل لکه: الله سبحانه وتعالی چې په قصه د موسی عليه السلام کې فرمايي: [فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِي مِن شِيعَتِهِ عَلَى الَّذِي مِنْ عَدُوِّهِ فَوَكَزَهُ مُوسَى فَقَضَى عَلَيْهِ..] (القصص :۱۵) .

ژباړه: په هغه چا چې له دښمنانو څخه يې وو د کومک غوښتنه وکړه، موسی دښمن يو سوک وواهه او د هغه کار يې پوره کړ.

۴- په پيريانو او يا مړو او غائبو باندې پناه غوښتل شرک اکبر دی او ددې عنوان اصلی مقصد همدا قسم استعاذه ده.

د جاهليت په زمانه کې به انسانانو پيريانانو ته پناه وړله چې قرآنکريم يې داسې حکايت کوي:

[وَأَنَّهُ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْإِنسِ يَعُوذُونَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوهُمْ رَهَقًا] (الجن: 6).

ژباړه: او د انسانانو ډيرو سړيو د پيريانو له ډيرو سړيو څخه پناه غوښتله نو په دې کار يې د پيريانو غرور، ظلم او گناه لاپسې زياته کړه.

پيريانو ته پناه وړل، همدارنگه غايب پير او مړي ته د شر او ضرر څخه پناه وړل داسې چې ای پيره! تا ته د دې شر څخه پناه وړم ته زما د مدد لپاره را ورسيږه او د هغه متصرف گڼل او همدارنگه په کوم مړي باندې پناه

غوښتل او د هغه نه د شر او ضرر د دفعې لپاره مدد غوښتل شرک اکبر دی .
د غائب پیر، شیخ او بل کس نه مدد غوښتل او هغه ته خیالي پناه وړل د هغه د متصرف ګڼلو په مقصد دي او همدارنګه د مړو څخه سوال او مدد غوښتل د غیر الله څخه مدد او غیر الله ته پناه وړل دي چې نه هغوی د چا غوښتنې اورې او که یې واوري هم د چا غوښتنې پوره کولای نشي .
لقوله سبحانه وتعالی :[قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُمْ مِنْ دُونِهِ فَلَا يَمْلِكُونَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيلًا] (اسراء ۵۶) .
ژباړه: (ووایه ای محمده!) چې هغه خدایان مو رابولئ چې تاسې د الله نه پرته پرې د خدای ګمان کوئ له هغوی سره واک نشته چې تاسې نه سختي او ضرر لرې، او یا یې مخه پر بل لور واړوي .
او د مړو د عبادت په باره کې فرمایي: [إِنْ تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ ...] (فاطر: ۱۴).
ژباړه: که تاسې را وبولئ نو ستاسې بلنه نه اوري، او که وایې وري هم نو ستاسې غوښتنې نشي پوره کولای . او د قیامت په ورځ به ستاسې له شریک نیولو څخه انکار هم وکړي .

شیخ فخر الدین حنفي په رساله کې لیکي :
"ومن ظن أن المیت یتصرف في الأمور دون الله، واعتقد بذلك كفر. كذا في "البحر الرائق".
ژباړه: او که څوک دا ګمان کوي چې مړي د الله تعالی نه ماسوا متصرف د امرو دی او په دې باندې یې عقیده وي نو دا کفر دی او

همدارنګه دا قول یې په بحر الرائق هم ذکر کړی دی .

او قاضي حمید الدین ناکوري هندي په توشیح کې لیکي :منهم الذين يدعون الأنبياء والأولياء عند الحوائج والمصائب باعتقاد أن أرواحهم حاضرة تسمع النداء وتعلم الحوائج، وذلك شرك قبيح وجهل صريح، قال الله تعالى (ومن أضل ممن يدعوا من دون الله من لا يستجيب له إلى يوم القيامة، وهم عن دعائهم غافلون) (سورة الأحقاف: الآيه ٥) .

ژباړه: ځینې د دوی داسې کسان دي چې انبیاء، اولیاء په وخت د مشکل او سختی کې غواړي (د هغوی نه مدد غواړي) په دې عقیده چې هغوی حاضر او ناظر دي او غږ اوري او په حوائجو (ضروریاتو او مشکلاتو) پوهیږي، دا ډیر بد شرک دی او ښکاره جهل دی، الله سبحانه وتعالی فرمایي :(او څوک دي ډیر ګمراه له هغه چا چې بولي بې له الله څخه هغه چې نشي قبلولی هغه لره تر ورځې د قیامته پورې او دغه له دعا او بلنې د دوی بې خبره دي) .

# نهم فصل
# سحر او نظر حق دي

د اهل سنت و الجماعت په نزد د معتزله پر خلاف سحر او نظر دواړه حق دي .

په دليل د قول د رسول الله صلی الله عليه وسلم چې فرمايي: «العين حق» (رواه احمد و شيخان) .

يعنې: د سترګو نظر حق دی .

او فرمايي: «ان العين لتدخل الرجل القبر، و الجمل القدر » (ابوداود او ابن ماجه) .

يعنې: او يقيناً د سترګو نظر سړی قبر ته رسوي او اوښ قدر ته .

او فرمايي: «ان السحر حق » (يقيناً سحر حق دی) .

په دليل د دغه قول د الله تعالی چې فرمايي: و ما انزل على الملكين (البقرة ١٠٢)، و قوله تعالى: و من شر النفثت فى العقد (الفلق) .

(شرح فقه اكبر / ملا علي قاري ص ٤٠٨) .

الله سبحانه وتعالی په خپل کتاب قرآنکريم کې د سحر په اړه داسې ارشاد فرمائي :

[وَاتَّبَعُواْ مَا تَتْلُواْ الشَّيَاطِينُ عَلَى مُلْكِ سُلَيْمَانَ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ وَلَـكِنَّ الشَّيْاطِينَ كَفَرُواْ يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ وَمَا أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوتَ وَمَارُوتَ وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّى يَقُولاَ إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلاَ تَكْفُرْ] (البقره ١٠٢) .

ژباړه: او د هغه څه متابعت يې پيل کړ چې شيطانانو به د سليمان عليه السلام د پاچاهی (په زمانه کې) لوستل، دا په داسې حال کې چې سليمان د کفر لاره نه وه غوره کړی، بلکې په خپله دا شيطانان کافران شوی وو، خلکو ته يې جادو اوهغه څه ورښودل چې د بابل په دوو ملائکو هاروت او ماروت نازل شوی وو، (دی

ملائكو) به هیچا ته څه تعلیم نه ورکاوو مګر دا چې ورته ویل به یې مونږ (خو د یوه) امتحان (لپاره راغلي) یو، نو ته مه کافر کیږه .

هاروت او ماروت د بابل په دروازه کې دوې ملائکې وې چې الله سبحانه وتعالی د انسانانو د امتحان لپاره رالیږلې وې هغوی به خلکو ته ویل مونږ خو د امتحان (لپاره راغلی) یو، نو تاسی مه کافر کیږئ . او هغوی خلکو ته د سحر خطرناکې پایلې بیانولې .

**د سحر او نظر علائم :**

د سحر، نظر او پیریاني کس علایم تقریباً مشابه دي خو د سحر او جادو څو علائم په لاندې ډول دي:

۱ - کور ته د ننوتلو په وخت کې سخت په تنګتوب.

۲ - پرته له کوم سبب څخه ژړا او یا خندا.

۳ -د ذکر او عبادت څخه کرکه کول.

۴ - قولنج او د خېټي همیشنی درد.

۵ - بغیر له کوم سبب څخه د میړه یا د ښځې څخه شدیده کرکه کول.

٦ -د سحر له آیتونو څخه متأثیر کیدل.

**د ساحر او جادو ګر علائم:**

۱ - ساحر اوکاهن د مریض او د مریض د مور د نوم پوښتنه کوي.

۲ - د مریض څخه ځینی نښې نښانې غواړي لکه خولی، ږومنځ او داسې نور.

۳ - د یو حیوان په خاصو صفاتو ذبحه کول غواړي او د حیوان د ځنو برخو ګډول له وینی سره.

۴ - په بې مفهومه خبرو او نیمګړیو تورو به خبرې کوي.
۵ - یو شی به مریض ته ورکوي چه په ځمکه کې یې خښ یا یې د کور په کوم ځای کې پټ کړي .
۶ - د خاصو وسایلو په وسیله د مریض له احوالو ځان خبرول.
۷ - د فسق علایم، په نومړي کس کې به د فسق علایم څرګند معلومیږی تقوی به له سره نلري یو فاسق انسان به وي. (من موقع الاسلام سوال جواب)

**د سحر او کوډو علاج:**

د کوډو او سحر علاج په ساحر او کوډګر باندې حرام دی ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه چا پوښتنه وکړه چې د سحر علاج په سحر باندې جایز دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم ور ته وفرمایل «هُوَ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ » (رواه أبو داود - ۳۸۶۸) .
یعنې: دا د شیطان عمل دی (داسې کول جایز نه دي).
بلکې د سحر علاج به په قرآنکریم او شرعي اذکارو سره کیږي.
علماء کرامو د قرانکریم لاندې آیتونه ښودلې دي چې هغه به په مریض باندې دم او یا په ابو باندې دم کړ شي او هغه اوبه به مریض ته ورڅښل کیږي.
۱ - د فاتحه د سورت لوستل.
۲ -آیة الکرسي لوستل.
۳ - د اعراف د سورة دغه آیتونه [قَالَ إِن كُنتَ جِئْتَ بِآيَةٍ فَأْتِ بِهَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ * فَأَلْقَى عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ * وَنَزَعَ يَدَهُ فَإِذَا هِيَ بَيْضَاء لِلنَّاظِرِينَ * قَالَ الْمَلأُ مِن قَوْمِ فِرْعَوْنَ إِنَّ هَـذَا لَسَاحِرٌ عَلِيمٌ * يُرِيدُ

أَن يُخْرِجَكُم مِّنْ أَرْضِكُمْ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ * قَالُواْ أَرْجِهْ وَأَخَاهُ وَأَرْسِلْ فِي الْمَدَآئِنِ حَاشِرِينَ * يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَاحِرٍ عَلِيمٍ * وَجَاء السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالْواْ إِنَّ لَنَا لأَجْرًا إِن كُنَّا نَحْنُ الْغَالِبِينَ * قَالَ نَعَمْ وَإَنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ * قَالُواْ يَا مُوسَى إِمَّا أَن تُلْقِيَ وَإِمَّا أَن نَّكُونَ نَحْنُ الْمُلْقِينَ * قَالَ أَلْقَوْاْ فَلَمَّا أَلْقَوْاْ سَحَرُواْ أَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوهُمْ وَجَاءوا بِسِحْرٍ عَظِيمٍ * وَأَوْحَيْنَا إِلَى مُوسَى أَنْ أَلْقِ عَصَاكَ فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ * فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُواْ يَعْمَلُونَ * فَغُلِبُواْ هُنَالِكَ وَانقَلَبُواْ صَاغِرِينَ * وَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سَاجِدِينَ * قَالُواْ آمَنَّا بِرِبِّ الْعَالَمِينَ * رَبِّ مُوسَى وَهَارُونَ] (اعراف ۱۰۶-۱۲۲) .

۴ - د يونس د سورت دغه آيتونه: [وَقَالَ فِرْعَوْنُ ائْتُونِي بِكُلِّ سَاحِرٍ عَلِيمٍ * فَلَمَّا جَاء السَّحَرَةُ قَالَ لَهُم مُّوسَى أَلْقُواْ مَا أَنتُم مُّلْقُونَ * فَلَمَّا أَلْقَواْ قَالَ مُوسَى مَا جِئْتُم بِهِ السِّحْرُ إِنَّ اللّهَ سَيُبْطِلُهُ إِنَّ اللّهَ لاَ يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِينَ * وَيُحِقُّ اللّهُ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُونَ] (يونس ۷۹-۸۲) .

۵ - د طه د سورت دغه آيتونه [فَأَجْمِعُوا كَيْدَكُمْ ثُمَّ ائْتُوا صَفًّا وَقَدْ أَفْلَحَ الْيَوْمَ مَنِ اسْتَعْلَى * قَالُوا يَا مُوسَى إِمَّا أَن تُلْقِيَ وَإِمَّا أَن نَّكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقَى * قَالَ بَلْ أَلْقُوا فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَى * فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُّوسَى * قُلْنَا لاَ تَخَفْ إِنَّكَ أَنتَ الأَعْلَى * وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوا إِنَّمَا صَنَعُوا كَيْدُ سَاحِرٍ وَلاَ يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ أَتَى] (طه :۶۵-۶۹) .

۶ - سوره اخلاص (قل هو الله) او معوذتين (قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس سورتونه تر آخره لوستل) درى ځله لوستل.

خپله مریض یې هم پر خپل ځان دم کولای شي، او که یو صالح عالم ته ورشي ډیر به ښه وي، لکن ددې آیتونو په تلاوت کې اخلاص او یقین ضرور دی.

**ساحر او کاهن ته ورتلل حرام دي :**

ساحرو کوډګرو کاهینانو،پال بینو اوغیب ویونکو ته ورتګ شرعاً حرام دی.

په دې باره کې په سنتو کې سخت وعیدونه ذکر شوی دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: مَن أتَي عَرَّافَاً فَسَألَهُ عَن شَئٍ فَصَدَّقَهُ لمَ تُقبَل لَهُ صَلاةٌ أربَعِينَ يَوماً (رواه المسلم).

ژباړه: څوک چې عرافی (هغه کس چې غلا شوی مال معلوموي او یا د غیبو دعوی کوي) ته ورشي او د یو شي په اړه له هغه څخه پوښتنه وکړي او هغه رښتیا و بولي د څلویښتو ورځو لمونځ نه قبلیږي.

او همدارنګه فرمایي: «مَن أتَي كاهِنَاً فَصَدَّقَهَ بمَا يَقُولُ فَقَد كفَر بمَا أنزَلَ عَلَي مُحَمَّدٍ صَلَّي الله عَلَيهِ وَ سَلَّم» (رواه احمد).

ژباړه: هر څوک چه فالګیر (هغه کس چه دعلم غیب دعوا کوي) ته ورشي او د هغه خبرې رښتیا وګڼې داکس په هغه څه کافر شو کوم چه په محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوي.

**د کاهن د خبرو تصدیق او منل کفر دی:**

ملا علي قاري په شرح فقه اکبر کې لیکي :

و منها: ان تصديق الكاهن و المنجم بما يخبر من الغيب كفر، لقوله سبحانه وتعالى: [قُل لاَّ يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ الْغَيْبَ إِلاَّ اللَّهُ ..] (النمل:٦٥).

و لقوله رسول الله صلى الله عليه وسلم: «مَن أتَي كاهِنَاً فَصَدَّقَهَ بمَا يَقُولُ فَقَد كفَر بمَا أنزَلَ عَلَي مُحَمَّدٍ صَلَّي الله عَلَيهِ وَ سَلَّم»

(شرح فقه اكبر / ملا على قاري ص ۴۱۶) .

**د سحر نظر او بلا د دفع لپاره د ځينو شيانو کارول :**

په غاړه کې شنو مريو، صدف اچول، د ليوه غاښ، بدراو او سپينلې دودول او نور د سحر او د سترګو د نظر لپاره کارول هيڅ شرعي اصل نلري، هيڅ رقيه جواز نلري مګر دا چې رقيه شرعي له قرآن او سنتو څخه وي .

د دغو شيانو د کارولو حکم په لاندې توګه دی :

**اول حکم:** څوک چې په دې عقيده وي چې دا شيان مؤثر بذات دي، ګټه رسوي او ضرر دفع کوي دا عمل شرک دی .

**دوهم حکم:** که څوک په دې عقيده وي چې دا هغه اسباب دي چې الله تعالی ددې په وجه بلاء دفع کوي شرک اصغر او ګناه ده ځکه چې دا خبره په اسلامي شريعت کې هيڅ اصل نلري او دا ذريعه شوه شرک لره.

د سحر او نظر علاج به په شرعي رقيه (دم) تر سره کيږي نه په شنو مريو، شنو جنډو، بدراو او سپينلې باندې ځکه چې داسې کول هيڅ شرعي اصل نلري او نه هم په طبي لحاظ څه اثر لري لکه درمل .

**دريم حکم:** او که څوک د نفع او د ضرر د دفع عقيده ونلري خو دا کارونه د تشبه او زينت لپاره کوي لکه په لاس يا غاړه کې د ځنځير اچول او داسې نور، نو دا کار په منع شوې تشبه کې راځي .

**شرعي دلائل :**

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«ومن تعلق ودعة فلا ودع الله له » (رواه احمد) .

يعني: که چا و ځړولو صدف (د بلاء او نظر دفع لپاره)، نو الله به د هغه څخه سکون او

اطمينان واخلي (د رسول الله صلى الله عليه وسلم بد دعايي ده) .

عن عمران بن حصين: أن رسول الله - صلى الله عليه وسلم - رأى رجلاً في يده حلقة من صُفْر، فقال: "ما هذه؟ "قال: مِن الواهِنة. فقال: "انزعها فإنها لا تزيدك إلا وهْناً، فإنك لو مت وهي عليك ما أفلحت أبداً (رواه أحمد، ابن ماجه و ابن حبان).

ژباړه: د عمران بن حصين نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم يو كس وليد چې حلقه يې په لاس كې وه (داسې حلقه چې په يوه شي احاطه شوې وه)، ويې فرمايل: دا څه دی؟ هغه وويل: واهنه مرض دی (د لاس د مفصل روماتيزم)، ويې فرمايل: دا لرې كړه ځكه دا نه زياتوي مگر ضعف او مرض، پس كچېرې ته مړ شي او دا دې په لاس وي نو هيڅكله به كامياب نشې .

روى ابن أبي حاتم عن حذيفة بن اليمان رضي الله عنه، أنه رأى رجلا في يده خيط من الحمى، يعني وضع هذا الخيط يزعم أنه ينفع في دفع الحمى أو رفعها، وهو المرض المعروف، فقطعه حذيفة، وهذا بحسب الحال، أن الإنسان ينكر المنكر بيده إذا كان له الصلاحية (المخلص في كتاب شرح التوحيد) .

ابن ابى حاتم له حذيفه بن يمان رضى الله عنه نه روايت كوي چې: هغه يو سړی وليد چې په لاس كې يې د يو مرض د دفع لپاره بند او حلقه وه، چې هغه كس په دې نظر وو چې دا ددې مرض دفع كوونكى دی، نو حذيفه رضى الله عنه هغه وربانډې قطع كړ، دا په دې وجه چې څوک په منكر باندې د منع كولو توان ولري نو هغه دې په لاس سره منع كړي (الاكاديمية الاسلامية - دوكتور سهل العتيبي) .

په همدې نبوي صلى الله عليه وسلم ارشاداتو باندې اکتفاء کوو:
الله سبحانه وتعالى دې مونږ د هر ډول پټ او ښکار شرک، بدعت او خرافاتو څخه وساتي.

**نفع او ضرر د الله تعالى له جانبه دى**

نفع او ضرر، خير او شر د الله تعالى د جانبه دي او د ايمان رکن دى چې مخکې د ايمان په ارکانو کې بيان شول دلته د نن عصر په يوه ګمراه کوونکي فتنه بحث کوو چې هغه يو دروغجن وصيت دى.
د شيخ احمد يا کوم بل نوم باندې درواجن وصيت چې دغه څو کاله د خلکو په مينځ کې وصيت پاڼې کارته پورته کيږي، په پښتو، دري انګليسي او نورو ژبو ليکل شوي وي چې د متن په يوه برخه کې يې داسې ليکلي دي:
[دا خبر راساً د مدينې د شيخ احمد لخوا د جمعې په ورځ را استول شوى دى، شيخ د قرآن د تلاوت وروسته بيده او په خوب کې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ويني چې ده ته مخامخ ولاړ دى او ورته وايي: چې په دې يوه هفته کې ۷۰۰۰ خلک مړه شول مګر د دوى څخه يو هم رښتينى مسلمان نه ؤ، هيڅ يو يې د الله د غوښتنې موافق عمل نه ؤ تر سره کړى.
هغه همدارنګه وويل: اوس بد وخت دى د نجونو بې حجابې، زکات نه ورکول، لمونځ نه کول وروسته د درواغو ډراميې ليک څه نوره ادامه مومې او په آخر کې د نوموړى خبر د قبول او رد رسولو او نه رسولو په اړه د ګټې او ضرر خبرداريئ ورکوي او پاى مومى.
اګر چه دا خبر يا ليک ځوابول هم نه ارزي ځکه چې دې ته اهميت ورکول الله تعالى مه کړه د مسلمانانو په سادګۍ او بې علمۍ دلالت کوي خو بيا هم يو مسئوليت يې بولو چې دغه فاسد

عقايد د اسلامي ارشاداتو په رڼا کې ځواب کړو او په آينده کې کوم څوک دې ته ورته درواغجنو او ګمراه کوونکو خبرو ته اهميت ورنه کړي .

**ددې ليک او يا وصيت رد :**

۱- خوب ليدل که رښتيا هم وي د پيغمبر څخه پرته که هر چا ليدلى وي کوم شرعى دليل نشي کيداى، په مسائلو کې پر خوب باندې اعتماد رواه نه دى خوبونو ته څه اعتبار دى اول خو د خوب حجت او دليل کېدل غيرثابت دي بيا دهغه صحيح تعبير په فکر کې را تلل ضروري نه دي (فتاوى ابوالمختار ج ۱ص ۱۴۴، افاضات ج ۹ ص ۲۱۰-۲۰۸) .

خوب د اوامرو په شناخت باندې دليل نشي کيداى ځکه خوب کله سم او کله خطا وي نو د خوب شرعي اصل او دليل کيدل يو خيال او ګمان دى (فتاوى البلدالحرام - مکه مکرمه ۱/۴۴۰-۴۴۳).

۲- په غيبو يواځې الله تعالى پوهيږي نفع او ضرر رسول يواځې د ستر څښتن تعالى (جل جلاله) کار دى او بس لقوله سبحانه تعالى :قُل لاَّ أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلاَ ضَرًّا إِلاَّ مَا شَاء اللهُ وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لاَسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ إِنْ أَنَاْ إِلاَّ نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ (الاعراف: ۱۸۸) .

ژباړه: ووايه (اى محمده ! دوى ته) چه زه ځان ته د نفع او ضرر رسولو واک نه لرم مګر هغه څه چې اراده وفرمائي الله، او که زه پوهيدلى په غيب باندې نو خامخا حاصل کړى به مې واى ډير له خير (نفعى) او نه به ؤ رسيدلى ماته کوم ضرر او زيان، نه يم زه مګر ويرونکى (دکفارو په جحيم سره) او زيرى ورکوونکى (په نعيم سره) قوم د مؤمنانو ته .

تشريح: محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم د الله سبحانه وتعالى نازولى خاتم الانبياء او د ټول عالم لپاره را استول شوى پيغمبر هم ځان ته د ضرر او نفعې واک نه لري مګر د الله په اراده او همدارنګه په غيبو نه پوهيږي مګر د وحى په وسيله .

نو د سيد د ليک په رسولو او نه رسولو کې به څنګه نفع او ضرر وي ؟

دا يوه ګمراه کوونکى عقيده ده چې د قرآن او سنتو خلاف ده .

٣- که غالباً يو چا دا کار په دې موخه کړى وي چې خلک به پدې سره وويروم (امر په نيکى او منعه له بدو کارو) يې هدف وي نو دعوت خو بايد دقرآن اوسنتو دارشاداتو په رڼا کې وشي نه د درواغ جوړول له لارې، درواغ ويل خو کبيره ګناه ده .

آيا ته د قرآن د هغه وعيدونو څخه خبر نه يې؟ چې د زکات نه ورکونکو او لمونځ نه کوونکو په باره کې بيان شوي دي .

قوله تعالى: .... وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (التوبه ٣٤).

ژباړه: اوهغه کسان چه خزانه کوي سره زر او سپين زر (مال او دولت) او نه لګوى هغه په لاره د الله کښى (زکات نه ورکوي) نو زيرى ورکړه دوى ته په عذاب دردناک سره .

مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ * قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّي (المدثر: ٤٢-٤٣).

ژباړه: تاسې څه شي دوزخ ته بوتلى، هغوى به ووايي مونږ له لمونځ کونکو څخه نه ؤ.

د قرآن او سنتو په موجوديت کې د سيد خوب ته څه ضرورت ليدل کيږي ؟

پدی باور او د هغه په رسولو تأکید څه معنی لري؟

[فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا لِيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ] (الأنعام :۱۴۴) .

ژباړه: نو څوك دي ډير ظالم (نشته لوی ظالم) له هغه چا څخه چې پر الله باندې دروغ تړي ددې لپاره چې خلک بې له علمه گمراه کړي، بیشکه الله هدایت نه کوي ظالم قوم ته .

۴- یو ډله ده په نوم د کرامیه دا ډله عقیده لري چې د شریعت په اوامرو کې د ترغیب او ترهیب لپاره دوراغ احادیث او خبرې جوړول جایز دي زه فکر کوم دا وصیت لیکونکی به د همدې ډلې څخه وي، نو مسلمانان باید بېدار وي، هر څوک چې په دروغ احادیث جوړوي او هغه نورو خلکو ته رسوي دوزخي دی .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: (من کذب متعمداً فلیبواء مقعده من النار) (البخاري ۱۲۲۹) .

یعنې: څوک چې قصداً رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دروغ احادیث منسوبوي هغوی اصلاً ځان ته په دوزخ کې ځای برابروي.

### د کفارو په عقیدتي شعائرو کې شرکت کول

د اوس عصر یو بله فتنه دا ده چې مسلمانان د کفارو په اخترونو او مذهبي شعائرو کې

کېدون کوي چې دا يو خطرناک عمل د ايمان د زوال سبب جوړيږي چې ځېنې يې په لاندې ډول دي :

**کريسماس :**

د کفارو د اخترونو څخه يو هم د نصاراؤ اختر دی چې ميلاد عيسی يا کريسماس بلل کيږي، د Christmas کلمه له دوو برخو تشکيل شوې ده Christ په معنې د (المخلص) چې د مسيح لقب دی او دوهمه برخه يې mas ده چې د فرعوني کلمې نه اخيستل شوې ده چې معنې يې ميلاد دی، کريسماس په معنې د ميلاد مسيح چې دغه ميلاد د نصاراؤ مذهبي اختر او د خوښۍ ورځ بلل کيږي په دغو ورځو کې د خپلو پوچو او باطلو اعتقادات اظهار او خوښي ښکاره کوي او هغه لمانځي .

نو آيا کوم مسلمان به د هغوی دغه اختر لمانځنې ته تيار وي په داسې شان چې هغوی عقيده لري چې په دغه ورځ باندې العياذ بالله د الله زوی پيدا شوی دی حال دا چې مونږ مسلمانان په دې باندې کلکه عقيده لرو چې: (لم يلد ولم يولد * ولم يكن له كفواً أحد) .

نصارا خو په تثليث باندې عقيده لري، پر الله تعالى باندې عقيده لرل او د هغه سره شريک نيول عيسی (زوی) اوروح القدوس (جبريل) له هغه سره شريکوي (العياذ بالله) (الموسوعة الميسر ص ٥٠٣).

او د ميلاد په اختر کې هغوی د همدغه عقيدې لمانځنه او اظهار کوي .

**نو آيا کوم مسلمان به د هغوی دغه لمانځنې ته تيار شي ؟**

حال دا چې مونږ په دې باندې ايمان لرو چې حضرت عيسی عليه السلام د الله تعالى پيغمبر ؤ .

قرآنکریم د هغوی ګمراهې داسې بیانوي: (يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لاَ تَغْلُواْ فِي دِينِكُمْ وَلاَ تَقُولُواْ عَلَى اللهِ إِلاَّ الْحَقِّ إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللهِ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِّنْهُ فَآمِنُواْ بِاللهِ وَرُسُلِهِ وَلاَ تَقُولُواْ ثَلاَثَةٌ انتَهُواْ ...) (النسآء ۱۷۱) .

ژباړه: ای اهل کتاب! پخپل دین کې افراط مه کوئ او الله ته له حق ویلو پرته بل هیڅ خبره مه منسوبه وئ یقیناً چه عیسی زوی د مریمی له دې پرته چې د الله رسول او فرمان ؤو نور څه نه ؤ چې الله مریمی ته ولیږو چې د الله له لوري یو روح ؤ چه د مریم په رحم کې یې د ماشوم بڼه غوره کړه . نو تاسې په الله او ټولو پیغمبرانو ایمان راوړئ او مه وایئ چه خدای دری دي منعه شئ (له دې باطلو عقائدو) .

**نوروز :**

نوروز او نوبهار په اصل کې د زردشت او اور پرستو اختر دی چې تقریباً ۵۸۳ میلادي کال نه وړاندې پیل شوی دی دا اختر به د اورپرستو لخوا د خپل عبادت د نوی ورځې پیل د احترام په خاطر لمانځل کېده .

ددې اختر د لمانځلو او تعظیم په باره کې حنفي فقهاؤ داسې فتاوې ورکړي دي :

(و من اهدی بیضة الی المجوس یوم النوروز، کفر، ای لأنه اعانة علی کفره و اغوائه، أو تشبه بهم في اهدائه) .

و في الفتاوي الصغری: من اشتری یوم النوروز شیئاً ولم یکن یشتریه قبل ذلک، أراد به تعظیم النوروز، کفر، ای لأنه عظم عید الکفر. (شرح فقه اکبر / لملا علي قاري ص ۴۹۹) .

ژباړه: که څوک د نوروز په ورځ اور پرستو ته هګۍ هدیه کړي، کافر شو، ځکه هغه د کفر

اعانت او مدد وکړ او د هغوی سره يې د سوغات په ورکولو کې تشبه وکړه .

او په فتاوی صغری کې دي: که څوک د نوروز په ورځ څه شی (د نوروز د تعظيم په نيت) واخلي چې په نورو ورځو کې يې نه اخلي او مطلب يې د نوروز تعظيم وي، کفر دی، ځکه دا د کفارو ستر اختر دی .

همدارنګه ملاعلي قاري ليکي: و سأل المعلم النيروزيه و لم يعطه المسئول عنه، يخشي على المعلم الکفر، و لو اعطي المسئول عنه، يخشي عليه الکفر.

ژباړه: که معلم له زده کوونکو څخه د نوروزي سوغات وغواړي، او زده کوونکی هغه شی ورته ورنکړي، نو په معلم د کفر ويره ده او که زده کوونکی يې خبره ومني او هغه ورته ورکړي نو پر هغه هم د کفر ډار شتون لري..

همدارنګه قاضي خان په خپله فتاوي کې ليکي :رجل اشترى يوم النيروز شيئا لم يشتره في غير ذلك اليوم: إن أراد به تعظيم ذلك اليوم كما يعظمه الكفرة يكون كفرا .

ژباړه: که يو کس څه شی د نوروز په ورځ واخلي او هغه شی د نوروز پرته په نورو ورځو کې نه اخلي او که نيت يې ددې ورځې تعظيم او احترام وي لکه څنګه چې کفار د هغه تعظيم کوي نو دا عمل کفر دی .

**مسلمانانو وروڼو او خوېندو!**

د کفارو په اخترونو کې حضور او ګډون کول په اتفاق د امت حرام او ستر عقيدوي خطر دي :

کفايت المفتي د کفارو په اخترونو کې د ګډون کولو حرمت بيان کړی دی او بيا يې په همدې مطلب کې لاندې حديث شريف نقل کړی دی :

عن عبدالله بن مسعود رضى الله عنه قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من كثر سواد قوم فهو منهم و من رضى عمل قوم كان شريكا لمن عمله (المطالب العالية بزوائد المسانيد الثمانية ۲۴/۲) .

يعني: څوک چې د کوم قوم ډله زياته کړي نو د هغوى له ډلې دى، او څوک چې د يو قوم په عمل باندې راضي شي دى د هغه قوم په عمل کې شريک شميرل کيږي . (کفايت المفتي ج ۹ ص ۳۱)

د حضرت عمر رضى الله عنه په شرايطو کې چې ټول صحابه ورسره متفق ؤ راغلي دي چې اهل ذمه به په دار الاسلام کې خپل اخترونه نه ښکاروي او د هغه لمانځنه به نه کوي، نو چې د کافر د پاره په دار الاسلام کې د کفري شعائرو او عقائدو لمانځل او ښکاره کول د مسلمانانو د پاره خطر وي، مسلمانانه! ته چې د کفر په پوچو او باطلو عقيدوي لمانځنو او شعائرو ورګډيږي آيا ستا دين ته به خطر نه وي؟ (الفقه الإسلامي - التشبه المنهي عنه ص۵۳۳) .

او عبدالله بن عمرو رضى الله عنه قول دا دى چې : څوک تر مرګ پورې د مجوسيانو په اختر (نوروز، مهرجان) کې ګډون کوي او د هغوى سره مشابهت کوي نو هغه به هم د قيامت په ورځ د همدغو کفارو سره حشر کيږي (السنن الكبرى: ۴۳۲/۹).

وفي "الموسوعة الفقهية" (۷/۱۲) : التشبه بالكفار في أعيادهم: لا يجوز التشبه بالكفار في أعيادهم , لما ورد في الحديث: (من تشبه بقوم فهو منهم) , ومعنى ذلك تنفير المسلمين عن موافقة الكفار في كل ما اختصوا به...

ژباړه: موسوعة فقهيه کې د کفارو سره د تشبه په باره کې راغلي: د کفارو سره د هغوى د اخترونو په لمانځلو کې تشبه کول حرام دي، په دليل ددې چې په حديث کې راغلي: «من تشبه

بقوم فهو منهم » (څوک چې د کوم قوم سره تشبه کوي د همغه قوم څخه به وشميرل شي)، او ددې معنى دا ده چې مسلمانان به په ټولو هغو امرو کې چې هغوى (کفارو) ته خاص وي تنفر او کرکه کوي .

د حرمت او عقيدتي خطر وجه څه ده ؟

د آدم عليه السلام د وخت څخه او بيا د اسلام د مقدس دين د ظهور څخه تر نن پورې انسانان په دوو جلا ملتونو تقسيم شوي دي، د کفر ملت او د اسلام ملت، دا دواړه ملتونه يو د بل مخالف ملتونه دي او هيڅکله يو پر بل کې نه شي ور ګډېدلاى او هر ملت په خپل مينځ کې دوستان او ملګري دي لکن مخالف ملت ته په دښمني کې يو لاس دي .

لقوله سبحانه وتعالى :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ. [المائدة:51]

يعنې: اى مؤمنانو، يهوديان او نصرانيان دوستان مه نيسئ دوى په خپلو منځو کې سره ملګري دي او که له تاسې څخه څوک هغوى خپل ملګري ونيسي نو بيا هغه هم په همغوى کې شميرل کيږي، پدې کې شک نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښوونې بې برخې کړي دي .

او فرمايي: وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ .... (التوبه ٧١)

ژباړه: او مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې ځينې د ځينو نورو دوستان دي امر کوي په نيکى او له بدليو نه خلک منع کوي .

نو څنګه کیدای چې مسلمان د کفارو په شعائرو، اخترونو، عقیدتي خوښی کې ګډون وکړي ؟

حال دا چې په دې لمانځنه او ګډون کې لاندې قبیح اعمال موجود دي:

١- د کافرانو صف او ډله زیاتول .

٢- د اسلام او مسلمانانو پر وړاندې دریځل ځکه چې کفر د اسلام پر وړاندې یو ملت دی .

٣- د هغوی په دغه کفري عقائدو او شعائرو باندې رضا کیدل .

**مسلمانانو ورونو او خوندو !**

اصلاً هیڅ مسلمان دا کار نه کوي مګر ځنې یې چې کوي د هغه وجه جهل دی، هغوی نه پوهیږي .

ټولو مسلمانانو ورونو او خویندو ته مو دا نصیحت دی که په داخل کې یاست یا په بهرنیو هیوادونو کې استوګن یاست خپل ځانونه، خپل ملګري او خپلوان او خپل اولادونه دغو مسائلو او عقیدتې خطراتو ته متوجه کړئ تر څو کوم مسلمان په دغه خطرناکو کفري شعائرو کې ګډون ونه کړي .

الله تعالی د مسلمان صفت داسې بیانوي :

﴿وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا﴾ [فرقان 72]

ژباړه: د الله تعالی بندګان هغه کسان دي چې په زور (نا مناسبو او منحرفو) مجالسو کې نه حاضریږي او کله چې ناګهانه د اهل باطل په پوچو خبرو ور برابر شي په شریفانه ډول له هغه ځخه مخ اړوي او تیریږي.

**د کفارو د اخترونو تیار کړي خوراکونو خوړل حرام دي:**

فتاوي اللجنة الدائمة لیکي :

لا يجوز للمسلم أن يأكل مما يصنعه اليهود أو النصارى أو المشركون من الأطعمة لأعيادهم، ولا يجوز أيضاً للمسلم أن يقبل منهم هدية من

أجل عيدهم، لما في ذلك من تكريمهم والتعاون معهم في إظهار شعائرهم وترويج بدعهم ومشاركتهم السرور أيام أعيادهم .
ژباړه: د مسلمان د پاره جایز نه دي چې د یهودو، نصارا او مشرکینو د اخترونو تیار کړي خوراک وخوري، او همدارنګه مسلمان ته جایز نه ده چې د هغوی د اخترونو هدیه او سوغاتونه قبول کړي، ځکه په دې کې د هغوی اکرام او احترام او مدد کول دي او د هغوی د شعائرو ښکاره کول او د بدعت رواجول او د هغوی په اخترونو او خوشحالی کې شرکت کول دي .
و ما توفیقي الا بالله علیه توکلت و الیه انیب

## ډیوکراسي د ننی زماني بت

تعریف: د ډیموکراسی (Democratie) لغت لاتیني دی، چې له دو برخو جوړه شوي ده (Demos) په منعی د خلکو او (Cratie) په معنی د حکومت چې پوره معنی یې د خلکو حکومت یا د خلکو لپاره حکومت ده.
په اصطلاح کې ډیموکراسي هغه حکومت دی چې قانون یې وضعي او ساختګي، نفسي خواهشات، هوا، هوس او منکرات یې بې قیده او بې واکه آزادي، فحشاء او اختلاط یې مساوات، سود، قمار، احتکار او تجارتي انحصار یې اقتصاد دی .
ډیموکراسي ځکه د نن زماني بت دی چې په دې سیستم کې د الله سبحانه وتعالی پرته او د هغه (جل جلاله) د رالیږلي اسلامي شریعت پرته د

بشر ساختګي حکم او قانون چلوي چې دا په دين کې يو معاصر شرک دی .

موسوعة الاديان و المذاهب المعاصره ليکي: په دې کې شک نشته چې ديموکراسي د نوي او عصري شرک څخه په عبادت او شريعت کې يو شرک بلل کيږي، د شريعت او قانون حق يوازې الله تعالی لره دی او دا صفت د الله تعالی دی، بشر ته ددې حق او صفت ورکول شرک دی .

الله جل جلا له فرمايي: [مَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا أَسْمَاءً سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ] (يوسف/ ٤٠)، ويقول تعالى: [إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ] (الأنعام/ ٥٧) .

ژباړه: هغه څيزونه چې تاسې د الله پرته عبادت کوئ هسې نومونه دي چې تاسې او ستاسې پلرونو ايښي دي، الله پاک پرې کوم دليل نه دی نازل کړی، واکمنې او حکم چلول يوازې د يو الله دی . هغه امر کړی دی چې پرته له هغه نه د بل هيچا عبادت بايد و نه کړئ او همدا سم او روغ دين دی خو ډير خلک نه پوهيږي .

او فرمايي: پرې کړې يوازې د الله تعالی په واک کې دي .

يعنې: هغه يوازې الله دی چې د انسانانو په مفاسدو او مصالحو، خير او شر پوهيږي او د قانون جوړلو پوره صلاحيت لري ځکه چې انسان يې خپل پيدا کړی مخلوق دی .

وقد جاء في " موسوعة الأديان والمذاهب المعاصرة " (٢ / ١٠٦٦، ١٠٦٧) : "ولا شك في أن النظم الديمقراطية أحد صور الشرك الحديثة، في الطاعة، والانقياد، أو في التشريع، حيث تُلغى سيادة الخالق سبحانه وتعالى، وحقه في التشريع المطلق، وتجعلها من حقوق

المخلوقين، والله تعالى يقول: (مَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا أَسْمَاءً سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ) يوسف/ 40، ويقول تعالى: (إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ) الأنعام/ 57" انتهى




**١ـ ځمکنی قانون :**

د ډيموکراسی بنسټ دی چې قانون به ځمکنی وي او هيڅ آسماني قانون د قبول وړ نه دی، حال دا چې د انسان په مفاسدو او مصالحو، خير او شر يوازې الله تعالى پوهيږي او هغه (جل جلاله) د انسان د پاره اسلامي قانون او شريعت نازل کړی بل هيڅوک ددې حق نلري، لقوله سبحانه وتعالى: [إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ] (الأنعام/ ٥٧)
.

ژباړه: پرې کړې يوازې د الله تعالی په واک کې دي.

او هغه کسان چې د اسلامي شريعت څخه پرته د بل قانون تحکيم غواړي، هغه خوښوي او د اسلامي شريعت په نسبت ترجيح ورکوي په هغوی باندې يې داسې حکم کړی دی:

[وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللهُ فَأُولَـئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ] (المائده:۴۴).

ژباړه: او هر څوک چې د الله په نازل شوی وحی پريکړې نه کوي نو همغوی کافران دي.

**۲ـ اختياري اخلاق:**

په ديموکراسی کې ثابت او مطلق اخلاق وجود نلري بلکي اختياري دي چې د خلکو د رأيو او پارلمان لخوا ټاکل کيږي، مثلاً که پارلمان شراب حرام وګرځوي، حرام دي، حتی که خلک د همجنس بازی او لواطت مشروعيت او آزادي وغواړي نو آزاد او مشروع به وي لکه: تير کال چې د امريکا پارلمان د لواطت يا همجنس بازی قانون تصويب کړ.

مګر په اسلامي شريعت کې هيڅ څوک دا حق نلري چې حلال حرام او حرام حلال کړي که چا دا کار وکړ هغه په اسلامي شريعت باندې کافر او مرتد شو دا تفصيل د کتاب په آخر را روان دی.

**۳ـ انسان مقدس دی:**

د انسان مقدس ګڼل دا معنی ده چې هر څه غواړي او کوي يې اختيار لري ځکه مقدس دی، خپله قانون ټاکي، دا که په اسلامي مقدسان، پيغمبر، قرآن، آسماني کتابونو او نورو مسخرې کوي کولای شي ځکه انسان مقدس دی او شريعت او اسلامي مقدسات هيڅ تقدس نلري (العياذ بالله).

او دا يو واضح او ښکاره شرک دی.

۴- آزادي :

**الف) د بيان آزادي :**

د اسلام په مقدس دين کې د بيان داسې آزادي ده چې هغه د خير او مصلحت لپاره وي نه د شر لپاره، نه د چا د سپکاوي لپاره د مثال په ډول ابوبکر صديق رضی الله عنه د خلافت په دوره کې خپل رعيت ته وايي که زه د تاسې شکاياتو ته غوږ ونه نيسم نو په ما کې خير نشته او که تاسې ماته خپل غيبونه را په ګوته نه کړئ نو بيا پر تاسې کې خير نشته .

همدارګه د اسلام دوهم خليفه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه يوه ورځ پر منبر د وعظ لپاره پورته شو يو کس را ولاړ شو او ورته ويې ويل: تر هغه د دعوت او تبليغ حق نلرې تر څو چې زما پوښتنې ته ځواب ونه وايې اميرالمؤمنين ورته وايي څه پوښتنه ده؟ ووايه، هغه کس ورته وايي: پوښتنه دا ده چې د ټولو لنګونه يوشان ؤ (د غنيمت په پيسو رخت اخيستل شوی ؤ چې ټولو ته مساوي ويشل شوی ؤ) ولی ستا لنګ اوږد دی ؟

اميرالمؤمنين ورته وايي ډير ښه دا ځکه اوږد دی چې زما قد څه لوړ ؤ هغه لنګ نه رسيدلو د خپل زوی لنګ مې ورسره يوځای کړی دی .پوښتنه کونکی وويل اوس پوه شم تبليغ پيل کړه .

د بيان آزادی خو دې ته وايې چې په هغی کې خير او مصليحت وي .

ولې په اسلام کې د بيان دا ډول آزادی ته اجازه نشته چې په هغې کې د دين، قوم او شخص سپکاوي وي لکه د ننی ديموکراسی د بيان آزادي، چې دين، پيغمبر، مقدساتو، قوم او

شخص ته سپکاوی یې د بیان د آزادی قانون دی
.

**ب): د دین آزادي :**

په دیموکراسۍ کې د دین آزادي ده، یعنې هر څوک اختیار لري، چې هر کوم دین اختیاروي، نو کولای شي، خو دا هسې یو خیال دی ځکه دوی پخپل قانون کې هیڅ آسماني دین نه مني، دیموکراسي نور د ټولو باطلو ادیان سره څه سازش کولای شي خو د اسلام او مسلمانو سره هیڅ سازش نشي کولای ځکه هغه هیڅ آسماني دین نه مني، دیموکراسي په اصل کې د اسلام د له مینځه وړلو یو کفري طاغوتي حرکت دی چې غواړي له دې لاري حاکمیت تر لاسه کړي اسلام له سیاست څخه ورک کړي او پر ځای یې وضعي قانون حاکم کړي مسلمانان جوماتونو ته حصار کړي، داسې چې د منبر صلاحیت او د بیان واک هم د دوی وي، او بلاخره په دې طریقه هغه مسلمانان چې د اسلامي شریعت تحکیم غواړي له مینځه یوسي، او غواړي په دې غوږ او درواغجن شعار باندې ضعیف الایمانه، جاهل او بې احساسه مسلمانان وغولوي او د نورو رښتینو مسلمانانو پر ضد یې وکاروي تر څو هغوی (کفارو) ته د حکومت کول او اسلام او مسلمانانو له مینځه وړل آسانه شي (العیاذ بالله)

**ج) د اقتصاد او بازار آزادي :**

په دیموکراسۍ کې د بازار کامله آزادی ده، حلال او حرام هر څه پکې چلیږي .

مګر په اسلامي شریعت کې د اقصاد له بنسټونو څخه دا دي چې: سود، قمار، احتکار، شراب، د خوګ غوښه، حرام آلات او وسائل، ظلم، چل او فریب ټول حرام دي .

او هغه کسان چې دغه بنسټونه په نظر کې نه نيسي هغوی د الله او هغه د رسول الله صلی الله عليه وسلم پر وړاندې د جنګ اعلان کړی دی :

[ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آَمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ * فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللهِ وَرَسُولِهِ ] ( البقرة)

**ژباړه : ای مؤمنانو ! له الله (جل جلا له (نه ووېرېږئ ، که په رښتيا مؤمنان ياست کوم سود مو چې پر خلکو پاتې دی هغه پرېږدئ ، نو که (دا کار ) مو و نه کړ (سود خوړل مو پرې نه ښودل ) د الله تعالی او د هغه د رسول الله صلی الله عليه وسلم له خوا جګړې ته چمتو شئ.**

**۵- انتخابات :**

په ديموکراسی کې د مشر ټاکل د عامو خلکو په رأيو تر سره کيږي داسې چې د مصلح او مفسد، عالم او جاهل، تقوی دار او فاسق، کافر او مسلمان به په رأيو کې سره مساوي وي .

مګر په اسلام کې امير د علماؤ او متخصصينو د اهل الحل و العقد شوری، يا د ولی العهد د ټاکلو له لارې او يا د فاسق او فاجر نظام نسکورول او د هغه پر ځای د اسلامي حکومت برقرارول د غلبې لياري ټاکل کيږي.

# لسم فصل
# نفاق او منافقت

منافقت دیته وایي چه د بنده ښکاره او ظاهر له زړه او باطن څخه مخالف او بل شان وي، او منافقت بیا په دوه ډوله دې: یو یې (نفاق اکبر) یعنې لوئ منافقت چه بنده له اسلام څخه وباسي، او بل یې (نفاق اصغر) کوچنی منافقت دی چه بنده له اسلام څخه نه وباسي، او همدې ته عملي نفاق هم ویل کیږي.

**لومړې: نفاق اکبر (لوئ منافقت):**

او هغه دا چه څوک په ښکاره د اسلام اقرار کوي، او په زړه کښی کافر او د ایمان او اسلام له منلو څخه منکر وي.

**دوهم: نفاق اصغر (کوچنی منافقت):**

او هغه دا چه په یو بنده کښې د منافقت ځینی عادتونه موجود وي، هغه عادتونه چه هغه پخپله بالذات بنده له دین څخه نه وباسي، لکه په عادي او عامو خبرو کښې دروغ ویل، له وعدې او لوظ څخه مخالفت کول، په امانت کې خیانت کول، د جنګ او شخړې په وخت کې ښکنځل کول، د معاهدې په وخت کښی خیانت کول... او داسې نور.

نو دې عادتونو ته په اسلامي شریعت کښی نفاق ویل شوې دی ځکه دلته هم د بل چا تیرایستل دي او دبنده ظاهر له باطن څخه مخالف دی.

**د منافقت علائم**

**اول:** په ما انزل الله کې شک کول او ظاهراً ځان مسلمان ګڼل: قال الله عزَّ وجلَّ: [إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ] (التوبه: ۴۵) .

ژباړه: يوازې هغه کسان له تا څخه اجازه غواړي چې پر الله او ورځ د آخرت ايمان نه لري د دوی زړونه شکمن دي نو دوی پخپل شک کې سرګردان دي.

**دوهم:** د الله او د رسول الله د حکم بد ګڼل او د هغه مخالفت کول: قال تعالی :[أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا*وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَى مَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنْكَ صُدُودًا] (النسآء:۶۱).

ژباړه: آيا هغو کسانو ته دې نه کتلي چې ګمان کوي چې دوی پر هغه څه چې پر تا او تر تا پخوا کسانو باندې نازل شوي دي ايمان لري؟ حال چې غواړي (خپلې پرېکړې او فيصلو) واک شيطان ته وسپاري په داسې حال کې چې حکم ور ته شوی دی چې د شيطان له پيروی څخه ډډه وکړئ شيطان غواړي چې ډير زيات يې بې لارې کړي .او کله چې دوی ته وويل شي چې د الله نازل شوي کلام او رسول ته راشئ نو ته وينې چې منافقان له تا څخه مخونه اړوي .

**دريم:** د اسلام او مسلمانانو په ظهور او کاميابی خفه کيدل او مسلمانانو ته د مصيبت په رسيدلو خوشحاله کيدل، قال تعالی :[إِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ وَيَتَوَلَّوْا وَهُمْ فَرِحُونَ] (التوبه :۵۰) .

ژباړه: که تا ته کومه ښيګڼه ورسيږي، نو دوی ځوريږي او که تا ته کوم مصيبت ورسيږي وايي، موږ خپل مصلحت لا له پخوا په پام کې نيولی وو او په خوښی سره بيرته ستنيږي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «آيَةُ الإِيمَانِ حُبُّ الأَنْصَارِ وَآيَةُ النِّفَاقِ بُغْضُ الأَنْصَارِ». [متفق عليه]

ژباړه: د ايمان نښه د رسول الله صلى الله عليه وسلم له انصارو سره محبت او مينه کول دي، او د نفاق او منافقت نښه له دغه انصاروسره کينه او بغض کول دي .

**څلورم:** د مسلمانانو په مينځ کې فتنه او تفرقې جوړول او د مسلمانانو په نفاق او تفرقو خوشحاله کېدل، قال تعالى:[لَوْ خَرَجُوا فِيكُمْ مَا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا وَلَأَوْضَعُوا خِلَالَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ] (التوبه:۴۷) .

ژباړه: که له تاسې سره وتلي واى نو پرته له ورانکارى څخه به يې بل څه نه وو کړي او ستاسې په مينځ کې به يې د فتنو او فساد د راپورته کولو لپاره ځغلنده قدمونه اخيستي وو .په داسې حال کې چې ستاسې په مينځ کې د هغوى لپاره غوږونه هم زښت ډير دي او الله پاک تيري کوونکي ډير ښه پيژني .

**پنځم:** د اسلام د دښمنانو سره محبت کول د هغوى د نظرياتو او قوانينو ستايل او نشرول او د اسلام مخالفت، قال الله تعالى: [أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ وَيَحْلِفُونَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ] (المجادله :۱۴) .

ژباړه: آيا ته هغو خلکو ته نه ګورې چې له هغه قوم سره دوستي کوي چې غضب پرې شوى دى؟ هغوى نه ستاسې دي او نه (هم) د يهودو، په دروا غو سوګندونه خوري او هغوى پوهيږي.

**شپږم:** د مسلمانانو په عبادت او قربانيو ملنډې وهل او د هغوى عيب بيانول، قال الله تعالى :[الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ مِنَ

الْمُؤْمِنِينَ فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِينَ لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُونَ مِنْهُمْ سَخِرَ اللَّهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ] (التوبه:٧٩) .
ژباړه: هغه (منافقان) چې په خپله خوښه ډير مال خيراتوونكو او د خپلې كمې وسې وړاندې كوونكو مؤمنانو باندې مسخري او ملنډې وهي الله پاک به يې د مسخرو سزا وركړي او دوى لره دردناک عذاب دى .
**اووم:** د مؤمنانو د دعا څخه مخ اړول له جهته د كبر او شک كولو: قال الله تعالى:[وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ لَوَّوْا رُءُوسَهُمْ وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُمْ مُسْتَكْبِرُونَ] (المنافقون :٥) .
ژباړه: او كله چې دوى ته وويل شي: راشئ چې د الله رسول تاسې ته بخښنه وغواړي، خپل سرونه شوروي او دوى به ووينې چې په تكبر سره (له دغې بلنې نه) مخ اړوي.
**آتم:** په لمانځه كې سستي كول: قال الله تعالى: [إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَى يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا] (النسآء :١۴٢) .
ژباړه: بې شكه منافقان (فكر كوي چې دوى) الله تيرباسي، حال دا چې الله دوى ته د دوى د تېر ايستلو (سزا) وركوي . او كله چې دوى لمانځه ته پاڅيږي بې له رغبته پاڅيږي دوى د خلكو په وړاندې ځان ښودنه كوي او الله نه يادوي خو لږ.
**نهم:** د الله رسول او مؤمنانو ته آزار رسول: قال الله تعالى :[وَمِنْهُمُ الَّذِينَ يُؤْذُونَ النَّبِيَّ وَيَقُولُونَ هُوَ أُذُنٌ قُلْ أُذُنُ خَيْرٍ لَكُمْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِينَ وَرَحْمَةٌ لِلَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ رَسُولَ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ]

[سورة التوبة]. وقال الله تعالى: [وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُبِينًا] (الاحزاب: ۵۸).

ژباړه: او له دوی (منافقانو) څخه داسې کسان دي چې نبي ته آزار رسوي او وايي، هغه ټول غوږ غوږ دي (د هر چا خبره اوري) ووايه: هغه ستاسې د خير د خبرو اوريدونکی دی، هغه پر الله ايمان او پر مؤمنانو باور لري او ستاسې د هغو کسانو لپاره چې ايمان لري رحمت دی. او هغه کسان چې د الله رسول صلى الله عليه وسلم ته آزار رسوي، دوی لره دردناک عذاب دی.

او فرمايي: او هغه کسان چې مؤمنانو او مؤمنو ښځو ته بې له څه آزار رسوي (او هغوی ته ستونزې جوړوي)، بې شکه چې دوی غټ تور او ښکاره ګناه پر غاړه اخلي.

په پيل کې مو وويل چې نفاق په دوه قسمه دي:

**اول قسم: اعتقادي نفاق،** او دا نفاق اکبر نفاق بلل کيږي چې په زړه کې کافر او ظاهراً ځان مسلمان بولي، ددې خاوند به په درک الاسفل من النار کې وي، [الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ] (النسآء ۱۴۵).

**دوهم قسم عملي نفاق:** هغه نفاق دی چې د منافقينو له اعمالو څخه کوم عمل په چا کې موجود وي (په دې سره له اسلامه نه وځي مګر دا يو وسيله ده د هغه طرف ته).

**ددې قسم منافقينو علائم**

اول: درواغ ويل، دوهم: د وعدې مخالفت کول، دريم: د امانت خيانت کول.

په دليل د دغه حديث شريف:«آية المنافق ثلاث: إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف، وإذا اؤتمن خان» (البخاري ومسلم).
ژباړه: د منافق درى نښې دي: كله چې خبرې كوي دروغ وايي، او كله چې وعده وكړي د هغه مخالفت كوي او كله چې امانت ورته وسپارل شي په هغه كې خيانت كوي .
څلورم: خيانت او غدر كول، پنځم: په جنګ او خصومت كې ښكنځلې او فحش ويل :
رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«اربع من كن فيه كان منافقا خالصا ومن كانت فيه خصلة منهن كان فيه خصلة من النفاق حتى يدعها: إذا اؤتمن خان وإذا حدَّث كذب وإذا عاهد غدر وإذا خاصم فجر» (متفق عليه).
ژباړه: څلور خصلتونه چې په چا كې وي خالص منافق دى او كه د دغو خصلتونو څخه كوم يو پكې وي نو په هغه كې به د نفاق خصلت وي: كله چې امانت ورته وسپارل شي په هغه كې خيانت كوي، او كله چې خبرې كوي دروغ وايي، او كله چې وعده او تړون كوي په هغه غدر كوي، او كله چې د چا سره شخړه وكړي ښكنځل او فحش وايي .
شپږم: په عبادت كې سستي كول:
[وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَى] (النساء 142).
ژباړه: او كله چې دوى لمانځه ته پاڅيږي بې له رغبته پاڅيږي.
اوم: د خلكو په مخ كې عبادت كول، په عبادت كې ريا كول:
لقوله تعالى:[يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا]
ژباړه: دوى د خلكو په وړاندې ځان ښودنه كوي او الله نه يادوي خو لږ.
آتم: د الله تعالى ډير لږ ذكر او ياد :

نهم: د لمانځه له خپل وخت څخه تأخير او ځنډول :

قال صلى الله عليه وسلم : "تلك صلاة المنافق، تلك صلاة المنافق، تلك صلاة المنافق، يرقب الشمس حتى إذا كانت بين قرني شيطان قام فنقر أربعاً لايذكر فيها إلا قليلا" رواه مسلم.

يعنې: دا د منافق لمونځ دی، دا د منافق لمونځ دی، دا د منافق لمونځ دی چه سړی ناست وي د لمر انتظار کوي تر څو ښه زيړ شي او د شيطان د دوه ښکرو په مينځ کې راشي – نو پاڅي څلور ټونګې ووهي او په دې کې الله ډير کم ياد کړي .

لسم: په هيڅ قسم جهاد کې برخه نه اخيستل :

او په صحيح مسلم شريف کښې د أبوهريره رضی الله عنه په حديث کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ» (رواه مسلم).

ژباړه: «هغه مسلمان چه مړ شي، او هغه نه غزا وکړي، او پخپل زړه کښې د غزا نيت تياری او مينه ونلري، نو دې هم د نفاق په يوه څانګه کښې مري».

حذيفه رضی الله عنه فرمايي: »زړونه په څلور ډوله دي:

١- يو هغه زړه دې چه دوه مخی او دوه رنګه يا کوږ وي، نو دا د منافق زړه دې.

٢- بل هغه زړه دې چه له حق څخه په پردو کښې وي، نو دا دکافر زړه دې.

٣- بل هغه زړه دې چه صفا او پړقيدونکې وي، لکه په ده کښې چه ډيوه وي چه رڼا کوي، نو دا د مؤمن زړه دې.

٤- بل هغه زړه دې چه په هغه کښې د نفاق خصلتونه هم وي او ورسره ايمان هم وي، نو ددې مثال داسې دې لکه په جسم کښې دانکې

(،چه هم پکښی وینه وي، او هم زوی، یایي مثال داسی دې لکه هغه ونه چه کله ورته شایسته او ښی اوبه راځی او هغه پری خړوبیږي، او کله ورته خرابی اوبه راځي او پری خړوبیږي، نو هر کومی اوبه چه غالبه شوی، نو خوند به یې هم د هغی وي [رواه ابن أبي شيبة في المصنف وفي كتاب الإيمان، و سلسلة صحيحة].

**د منافقت څخه وېره :**

له همدې کبله د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین او دتابعینو رحمهم الله په زړونو کښی به سخته ویره وه چه هسی نه چه د منافقینو اعمال ورڅخه صادر نشي.

امام بخاری رحمه الله په صحیح بخاري کښی له ابن ابي مُلَیْکَ رحمه الله څخه نقل کوي چه هغه ویل: «د رسول الله صلی الله علیه وسلم له صحابه کرامو رضی الله عنهم څخه دیرش صحابه کرام ما لیدلي دي چه دا ټول به په خپل ځان باندی له نفاق څخه وېرېدل، په دوی کښی یوه هم نشو ویلی چه دده ایمان د جبریل او میکاییل علیهما السلام له ایمان سره برابر دی، او د هغه په شان دی».

او له حسن بصري رحمه الله څخه نقل دی چه هغه به ویل: «له الله تعالی څخه وېره نکوي مگر مؤمن بنده یې کوي، او د الله تعالی له عذابه څخه نه په امن کیږي مگر منافق بنده».

او زید بن وهب رحمه الله وایي: « د صحابه کرامو رضی الله عنهم په زمانه کښې یو منافق سړې مړ شو، نو حذیفه رضی الله عنه پرې د جنازې لمونځ ونکړ، نو عمر بن الخطاب رضی الله عنه ورته وویل: دا هم له منافقانو څخه دې؟ هغه ورته وویل: هو، بیا عمر رضی الله عنه ورته وویل: ستا دې په الله تعالی قسم وي چه زه هم له منافقانو څخه یم؟ هغه ورته وویل: نه، خو

لــه تــا څخه وروسته بــه د هيچا دغسې سوال تــه جواب ونــه وايــم».
يــادونــه: حذيفــه رضی الله عنــه د رسول الله صلــی الله عليه وسلم رازدار صحابــي وو چې هغه تــه يــې د منافقــانــو لــيست سپارلــی وو .

# يوولسم فصل
# خلاصه نواقض الاسلام

### د اسلام او ايمان د نواقضو (ماتوونكو) خلاصه :

زمونږ ډير مسلمانان د اوداسه، لمانځه او روژې ماتوونكي پيژني، خو افسوس چې د دين د بنسټ (ايمان) ماتوونكي نه پيژني، ډير كسان داسې فكر كوي چې يو ځل سړى مؤمن او مسلمان شي وروسته نه كافر كيږي، او داسې فكر كوي چې ايمان داسې يو كانى دى چې كله يې په زړه كې ځاى ونيو بيا كه سړى هر قسم طاغوتي عقيده او اعمال تر سره كړي نه كافر كيږي، او ځينې داسې گمان كوي چې مونږ د پلرونو څخه مسلمان يو او اسلام مو ميراثي دين دى دا كه هر ډول طاغوتي او كفري عقائد او اعمال تر سره هم كړو نو زمونږ ارتداد به ناشونى وي .

### د مكفراتو (ايمان ماتوونكو څيزونو) پيژندل واجب دي :

شرح فقه اكبر ليكي :

ثم اعلم أن من أراد ان يكون مسلماً عند جميع طوائف الاسلام، فعليه أن يتوب من جميع الاثام صغيرها و كبيرها سواء ما يتعلق بالأعمال الظاهرة أو الأحوال من الوقوع فى الارتداد، و نعوذ بالله من ذلك، فانه مبطل للأعمال وسوء خاتمة المآل، وان قدر الله عليه و صدر عنه ما يوجب الرة فيتوب عنها و يجدد الشهادة لترجع له السعادة .

و لا يخفي ان هذاه الرواية مخالفة لظاهر الدراية حيث ورد في حديث «ان الله يقبل توبة العبد مالم يغرغر] ، بل النص الصريح في قوله سبحانه: [وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّى إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي

تُبْتُ الآنَ وَلاَ الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ أُوْلَـئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا] (النسآء :۱۸) .

فيجب على كل أحد معرفة الكفريات أقوي من معرفة الاعتقادات، فان الثاني يكفي فيها الايمان الاجمالي ....، و لذا قيل: الدخول في الاسلام سهل في تحصيل المرام، اما الثبات على الأحكام فصعب على جميع الأنام، ويشير اليه قوله تعالى :[إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلائِكَةُ أَلاَّ تَخَافُوا وَلاَ تَحْزَنُوا وَأَبْشِرُوا بِالْجَنَّةِ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ] (فصلت :۳۰)، وقد قالوا: الاستقامة خير من ألف كرامة .

**د متن ترجمه:** بیا پوه شه چې كه څوک اراده لري چې د اسلام په ټولو برخو کامل مسلمان وي نو هغه ته پکار ده چې د ټولو صغيره او کبيره ګناهونو هغه كه په اقوالو، ښكاره اعمالو او يا باطنو اخلاقو پورې اړه لري كوم چې د ارتداد سبب ګرځي توبه وباسي، او مونږ پناه غواړو پر الله تعالى له هغو څخه .

ځكه چې دا اعمال د ایمان باطل كوونكي او د بدې خاتمې سبب ګرځي، خدای مه كړه كه څوک په دغو شيان مبتدا شوی وي په هغه باندې واجب ده چې توبه وباسي او تجدید د شهادتينو وكړي تر څو د نيكمرغی طرفه ته لاړ شي .

او دا دې پته نه وي چې دا حديث « ان الله يقبل توبة العبد مالم يغرغر» له يوې خوا د اكثرو محدثينو په نزد ضعيف او له بلې خوا د قرآن د دغه نص سره مخالف دی چې:[وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّى إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الآنَ وَلاَ الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ أُوْلَـئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا] (خو د هغو كسانو توبه نشته چې د مرګ

تر غړ، غرو بد کارونه کوي او چې مرګ ويني وايي اوس مې په رښتيا توبه ده او د هغوی توبه هم نشته چې په کفر مړه کيږي ، د دوی لپاره مونږ دردناک عذاب تيار کړی دی) .

نو په توبه کولو کې بيړه پکار ده .

پس په هر يو باندې د مکفريات (د ايمان ماتوونکو) پيژندل په کلکه واجب دي، هر چې دوهم دي د (ايمان ارکان) په هغه باندې اجمالي ايمان کفايت کوي، او څکه ويل شوي: په اسلام کې داخليدل او مقصد او مرام ته رسيدل آسان دي مګر په ټولو احکام باندې ثابت پاتې کيدل مشکل دي، چې دې مطلب ته د الله تعالى دغه قول اشاره کوي: [إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةُ أَلاَّ تَخَافُوا وَلاَ تَحْزَنُوا وَأَبْشِرُوا بِالْجَنَّةِ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ] (يقيناً چې چا ويلي دي چې الله زمونږ رب دی او بيا په همدې خبرې ټينګ ولاړ وي نو ملائکې به پرې نازليږي او ورته وايي به چې مه وريږئ او مه غم کوئ او د هغه جنت زيری واخلئ چې له تاسې سره يې وعده کيدله) .

د پورته آيت کريمه د بيان وروسته وايي:

په دين باندې ثابت پاتې کيدل تر زرو کراماتو غوره دی .

(شرح فقه اکبر / لقاري المکي ص ۴۴۴)

**وروڼو او خويندو!** نو څرګنده شوه چې داسې نه ده بلکي اسلام ماتوونکي لري، ځينې په اقوال، ځينې په اعمالو او ځينې په اعتقاداتو پورې اړه لري، خدای مه کړه که سړی يې تر سره کړي له اسلام څخه وځي نو څکه د دغو شيان پيژندل پر مونږ باندې واجب دي چې ځينې يې په مختصر ډول بيانيږي :

۱- د الله سبحانه تعالى سره په توحيد عبادت او ربوبيت کې د څه شي شريک کول او يا د الله تعالى د ثابتو اسماء او صفاتو څخه څوک منکر شي يا الله تعالى ته څوک د اولاد نسبت وکړي ځکه الله جل جلاله (لم يلد و لم يولد) ذات دی او يا څوک د مخلوق په دوام او بقا عقيده ولري ځکه آيت شريف دی چې [کل شی ءٍ هالک الا وجهه] نو دا کس د اسلام څخه وتلی مرتد دی، د توحيد او د توحيد ضد چې شرک دی بيان يې مخکې په تفصيل ذکر شو .

اتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ عَلَى أَنَّ مَنْ أَشْرَكَ بِاللَّهِ، أَوْ جَحَدَهُ، أَوْ نَفَى صِفَةً ثَابِتَةً مِنْ صِفَاتِهِ، أَوْ أَثْبَتَ لِلَّهِ الْوَلَدَ فَهُوَ مُرْتَدٌّ كَافِرٌ

وَكَذَلِكَ مَنْ قَالَ بِقِدَمِ الْعَالَمِ أَوْ بَقَائِهِ، أَوْ شَكَّ فِي ذَلِكَ. وَدَلِيلُهُمْ قَوْله تَعَالَى: { كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلا وَجْهَهُ } .

(برنامج موسوعة الفقهية ج ۱۸۴/۲۲، حاشيه ابن عابدين ۲۲۳/۴)

.

يحكم بتكفير من انكر صفات الله تعالى الثابة، او نسب النقص الى الله تعالى، الغياذ بالله (شرح فقه اکبر / القاري مکي ص ۵۲۸)

۲- دا چې څوک د شريعت هغه احکام چې په تواتر حرام وي حلال وګڼي لکه: زنا، لواطت، شراب، سود، ظلم، او نور يا د شريعت حلال څوک حرام وګڼي لکه: نکاح، اسلامي تجارت او نور مرتد دی.

من انکر حرمة الحرام المجتمع على حرمته أو شک فيها، اى يسوي الأمر فيها کالخمر، والزنا واللواط و الربا، او زعم ان الصغائر او الکبائر حلال، کفر (شرح فقه اکبر - ملا علي قاري ص ۵۰۳).

همدارنګه د اصلي احکامو لاندې د فرعي احکامو همدا حکم دی لکه: د حيض په وخت کې

جماع كول، د ښځې سره د شاه په طرف کې جماع كول چې په سنتو ثابته ده حلال ګڼل يې كفر دى .

استحلال الجماع في الحيض، كفر . وقيل: استحلال الجماع في الاستبراء، اى من غير حيلة اسقاط، بدعة و ضلال و كفر، أى لأنه حرام بلا خلاف، الا أنه ثبتت حرمته بالسنة (شرح فقه اكبر ملا علي القاري ص ۴۸۵) .

۳- د اسلامي شريعت د كوم حكم څخه چې په اجماع ثابت وي انكار كول لكه: لمونځ، زكات، روژه، حج، جهاد ...

ځكه د شريعت د هر هغه حكم څخه انكار كوم چې په قرآن او صحيح سنتو ثابت وي اصلاً د قرآن او سنتو څخه انكار دى او د قرآن او سنتو څخه انكار د اسلام او ايمان له اركانو څخه انكار دى كوم چې مخكې د شرعي نصوصو په رڼا کې بيان شول .

إنكار حكم مجمع عليه في الإسلام، كإنكار وجوب الصلاة والصوم والزكاة والحج.... (فقه الاسلامي وادله - فتح القديد ۴/۳۸۵) .

يحكم بتكفير من انكر او استهزاء بحقائق الاسلام و ثوابته الثابتة بالدليل القطعي: مثل تواتر القرآن الكريم لفظاً ومعنى، مثل انكار السنة جميعاً، و انكار المتواتر منها، انكار الاجماع المتفق عليه بين العلماء عامة: مثل فرضية الصلوات الخمسة و مخاطبة المكلفين بالزكاة و الصوم والحج، اذا وقع ذالک عن علم و قصد و اختيار، العياذ بالله (شرح فقه اكبر / القاري المكي ص ۵۲۸) .

۴- دا چې څوک د قرآن څخه انكار وكړي يا د قرآن د يو آيت يا يوې كليمې يا حتى يو حرف څخه انكار وكړي، يا د قرآن په اعجاز

کې شک وکړي (د الله تعالی کلام یې ونه ګڼې) د اسلام څخه وتلی مرتد دی.

څکه د ټول او یا ځنې قرآن څخه انکار د ایمان د یو رستر رکن څخه انکار دی (امنت بالله وملائکته وکتبه ..) .

همدارنګه د قرآن تحریف ګڼل کفر دی، ځکه قرآن د تحریف څخه محفوظ دی [انا انزلنا الذکر و انا له لحافظین] .

وَيَكْفُرُ مَنْ جَحَدَ الْقُرْآنَ كُلَّهُ أَوْ بَعْضَهُ، وَلَوْ كَلِمَةً . وَقَالَ الْبَعْضُ: بَلْ يَحْصُلُ الْكُفْرُ بِجَحْدِ حَرْفٍ وَاحِدٍ. كَمَا يَقَعُ الْكُفْرُ بِاعْتِقَادِ تَنَاقُضِهِ وَاخْتِلافِهِ، أَوِ الشَّكِّ بِإِعْجَازِهِ، وَالْقُدْرَةِ عَلَى مِثْلِهِ (برنامج الموسوعة الفهية ۱۸۶/۲۲، ابن عابدين ۲۲۳/۴) .

۵- دا چې څوک قصداً قرآن په کثیف ځای کې وغورځوي یا تفسیر قصداً و غورځوي یا حدیث نو دا عمل د نه منلو او انکار معنی لري سړی په دې عمل له اسلام څخه وځي.

فعل بعض أفعال الكفار: كإلقاء مصحف في قاذورة متعمداً، وكذلك إلقاء كتب التفسير والحديث... (فقه الاسلامي وادله - حد الردة، فتح القدير ۳۸۵/۴) .

اتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ عَلَى أَنَّ إِلْقَاءَ الْمُصْحَفِ كُلِّهِ فِي مَحَلِّ قَذِرٍ يُوجِبُ الرِّدَّةَ ؛ لأَنَّ فِعْلَ ذَلِكَ اسْتِخْفَافٌ بِكَلامِ اللَّهِ تَعَالَى، فَهُوَ أَمَارَةُ عَدَمِ التَّصْدِيقِ (موسوعة الفقهية جز ۲۲، ابن عابدين ۲۲۲/۴) .

۶- دا چې څوک د الله تعالی د وجود څخه منکر شي، د ملائکو، د رسول الله صلی الله علیه وسلم او نورو پیغمبرانو د رسالت څخه او د نورو آسماني کتابونو څخه انکار وکړي د اسلام څخه وتلی مرتد دی .

ځکه چې دا د ایمان ارکان دي کوم چې بیان یې مخکې تیر شو .

[آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللّهِ وَمَلآئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ] (البقره:۲۸۵) .

ژباړه: رسول او مؤمنانو په هغه څه ايمان راوړی دی چې رسول ته نازل شوي دي . دوی ټولو په الله، او د هغه په ملائكو، او كتابونو او رسولانو ايمان راوړی دی.

۷- دا چې څوک په الله سبحانه وتعالی، رسول الله صلى الله عليه وسلم او نورو انبياؤ عليهم السلام او اسلامي شريعت باندې انتقاد وكړي (چې العياذ بالله دا دين او شريعت كامل نه دی)، يا شكنځل او بد رد ووايي او يا اهانت، ټوكې او مسخرې وربانديې وكړي دا كس مرتد دی .

لقوله سبحانه وتعالى: [وَلَئِن سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ قُلْ أَبِاللّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنتُمْ تَسْتَهْزِؤُونَ، لاَ تَعْتَذِرُواْ قَدْ كَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ] (التوبه: ۶۴-۶۵).

ژباړه: او قسم دی كه پوښتنه وكړې له دوی څخه چې تاسې ولې استهزا كوئ نو دوی به وايي چه يقيناً مونږ خو لوبې او ټوكې كولې، ووايه (ای محمده! دوی ته چه) آيا پر الله او د الله په آيتونو او د الله په رسولانو باندې مو استهزا او مسخرې كولې، عذرونه مه كوئ تاسې (مونږ ته په دروغو سره) يقيناً كافران شوې يئ تاسې وروسته له ايمان راوړلو.

۸- همداسې د اسلام په هر حكم باندې استهزاء او مسخري كول كفر دی .

وَمَنْ أَتَى بِفِعْلٍ صَرِيحٍ فِي الاسْتِهْزَاءِ بِالإِسْلامِ، فَقَدْ كَفَرَ . قَالَ بِهَذَا الْحَنَفِيَّةُ، وَدَلِيلُهُمْ قَوْله تَعَالَى: { وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا ...]

(موسوعة الفقهية جز ۲۲ ص ۱۸۴-۱۸۷، ابن عابدين ۲۲۲/۴) .

٩- همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ښکنځل او بد رد ویل، د هغه په شان او سنتو انتقاد کول کفر دی، همدارنګه د نورو ټولو پیغمبرانو همدا حکم دی .

حُكْمُ سَبِّ الرَّسُولِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: السَّبُّ هُوَ الْكَلامُ الَّذِي يُقْصَدُ بِهِ الانْتِقَادُ وَالاسْتِخْفَافُ، وَهُوَ مَا يُفْهَمُ مِنْهُ السَّبُّ فِي عُقُولِ النَّاسِ، عَلَى اخْتِلافِ اعْتِقَادَاتِهِمْ، كَاللَّعْنِ وَالتَّقْبِيحِ، أَنَّهُ مُرْتَدٌّ بِلا خِلافٍ (برنامج الموسوعة الفهية ١٨۶/٢٢، ابن عابدين ٢٢٣/۴).

مِنَ الأَنْبِيَاءِ مَنْ هُمْ مَحَلُّ اتِّفَاقٍ عَلَى نُبُوَّتِهِمْ، فَمَنْ سَبَّهُمْ فَكَأَنَّمَا سَبَّ نَبِيَّنَا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَابُّهُ كَافِرٌ، فَكَذَا كُلُّ نَبِيٍّ مَقْطُوعٍ بِنُبُوَّتِهِ، وَعَلَى ذَلِكَ اتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ (الموسوعة الفقهية) .

١٠- د نبوت او پیغمبری دعوا کول د علماؤ په اجماع باندی کفر شمیرل کیږي او دا دعوی چې د قرآن په شان بل کتاب راوړلی شي او داسې نور .

لقوله سبحانه وتعالى :[وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوۡ قَالَ أُوحِيَ إِلَيَّ وَلَمۡ يُوحَ إِلَيۡهِ شَيۡءٞ وَمَن قَالَ سَأُنزِلُ مِثۡلَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُۗ] (الأنعام: ٩٣)

ژباړه: او څوک دي ډیر لوئ ظالم له هغه چا چې جوړ کړي په الله تعالی باندی دروغ، او یا ووایي: چه ما ته هم وحی شوې ده، حال دا چه د هیڅ شي وحی ورته نه وي شوې، او هغه څوک چه ووایي: ژر دی چه زه به نازل کړم یو کتاب په شان د هغه کتاب چه الله تعالی رالیږلی دي.

همدارنګه که څوک د رسول الله صلی الله علیه وسلم د عامه رسالت څخه انکار وکړي او داسې ادعا وکړي چې هغه فقط د عربو لپاره مبعوث

شوی نه د ټول عالم یا د خاص وخت لپاره نه تر قیامته نو داسې ادعا کول کفر دی .

یحکم بکفر من انکر رسالة سیدنا محمد صلی الله علیه وسلم الی البشر کافة من ایامه و الی ان یرث الله الارض ومن علیها، و ادعي مثلاً انه صلی الله علیه وسلم ارسل الی العرب خاصة (شرح فقه اکبر / القاري مکي ص ٥٢٨) .

١١- أم المؤمنین عائشه رضی الله عنها ته ښکنځل کول، او په هغه تهمت یي بدنامول چه الله سبحانه وتعالی ورڅخه په سورت نور کښې د هغې براءت او پاکي بیان کړی ده، او یا هم نورو امهات المؤمنین د رسول الله صلی الله علیه وسلم بیبیانو ته دغه شان نسبت کول، کفر او د اسلام له مقدس دین څخه بیرون او وتلې شمیرل کیږي، ځکه د هغې پاکې په قرآن کې بیان شوې چې دا انکار اصلاً د قرآن څخه انکار دی .

اتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ عَلَى أَنَّ مَنْ قَذَفَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، فَقَدْ كَذَّبَ صَرِيحَ الْقُرْآنِ الَّذِي نَزَلَ بِحَقِّهَا، وَهُوَ بِذَلِكَ كَافِرٌ، قَالَ تَعَالَى فِي حَدِيثِ الإِفْكِ بَعْدَ أَنْ بَرَّأَهَا اللَّهُ مِنْهُ: { يَعِظُكُمُ اللَّهُ أَنْ تَعُودُوا لِمِثْلِهِ أَبَدًا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ }، فَمَنْ عَادَ لِذَلِكَ فَلَيْسَ بِمُؤْمِنٍ وَهَلْ تُعْتَبَرُ مِثْلَهَا سَائِرُ زَوْجَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَضِيَ اللَّهُ عَنْهُنَّ؟ قَالَ الْحَنَفِيَّةُ وَالْحَنَابِلَةُ فِي الصَّحِيحِ وَاخْتَارَهُ ابْنُ تَيْمِيَّةَ: إِنَّهُنَّ مِثْلُهَا فِي ذَلِكَ. وَاسْتَدَلَّ لِذَلِكَ بِقَوْلِهِ تَعَالَى: { الْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ وَالْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَاتِ وَالطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ وَالطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَاتِ أُولَئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ } (الموسوعة الفقهية ١٨٧/٢٢، ابن عابدين ٢٣٧/٤) .

ژباړه: ناپاکه ښځې د نا پاکو نارینه لپاره دي او ناپاک نارینه د ناپاکو ښځو

لپاره دي او پاکې ښځې د پاکو سړيو لپاره دي او پاک سړي د پاکو ښځو لپاره دي . د دوی لمن له هغو خبرو پاکه ده چې منافقان يې په دروا غو جوړوي .

١٢- دا چې څوک د اسلامي شريعت پر ځای د غير شرعي او کفري يا وضعي قانون حکم جايز وګڼې او يا کفري او وضعې قانون ته ترجيح ورکړي چې دا قانون (العياذ بالله) نسبت اسلامي شريعت ته ښه دی او د کفر په قانون خوښ وي نو دا عمل کفر دی .

لقوله سبحانه وتعالی :

[أَمْ لَهُمْ شُرَكَاء شَرَعُوا لَهُم مِّنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَن بِهِ اللَّهُ وَلَوْلاَ كَلِمَةُ الْفَصْلِ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ وَإِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ] (الشورى : ٢١) .

ژباړه: آيا دي دوی لره شريکان چې هغه دين يې ورته وړاندي کړي چې الله يې اجازه نه ده کړې؟ که خبره له پخوا څخه نه وای فيصله شوې نو هرو مرو به د هغوی په مينځ کې پرېکړه شوې وای . او يقيناً چې د ظالمانو لپاره دردناک عذاب دی .

[وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللهُ فَأُوْلَـئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ] (المائده: ٤٤) .

ژباړه: او هر څوک چې د الله په نازل شوی وحی پريکړې نه کوي نو همغوی کافران دي .

او دا چې وضعې قانون غوره وګڼې :

[أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ] (المائده: ٥٠) .

ژباړه: نو ايا دوی د جاهليت (د زماني) حکم غواړي؟ د يقين کوونکو خلکو لپاره بل څوک تر الله جل جلا له ښه حکم ورکولای شي ؟

او يا دا چې وضعې قانون د شرعي قانون سره مساوي وګڼې دا هم شرک دی :

[فَلاَ تَجْعَلُواْ لِلّهِ أَندَاداً وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ] (البقرة: ٢٢).

ژباړه: مه ګرځوئ له الله تعالی سره شریکان حال دا چې تاسې پوهیږئ.

د اسلام پر وړاندې بل هیڅ دین د قبول وړ نه دی.

(یحکم بکفر من زعم ان الله تعالی یقبل مع الاسلام دیناً، ولو کان مما انزله الله تعالی قبل، فان بعثة سیدنا محمد صلی الله علیه والسلم نسخت الأدیان و الشرائع السابق) (شرح فقه اکبر/ القاري مکي ص ٥٢٨).

دا چې د اسلام په نزول سره په پخوانیو آسماني شرائعو باندې فیصله کول کفر دی، د نن عصر کفري دیموکراسي او د انګلیس آیین چلول او هغه پر مسلمانو ولسونو باندې تپل به څنګه کفر نه وي؟ او وګورئ چې دا څومره عظیم ظلم دی.

ځکه چې حاکم او قانون جوړونکی یوازې الله تعالی دی [ان الحکم الا لله].

او دا چې قصداً او عناداً په اسلامي شریعت فیصلې نه کوي بلکې د کفر او مخلوق په قانون فیصلې کوي دا هم کفر دی.

[أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُواْ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُواْ إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُواْ أَن يَكْفُرُواْ بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلاَلاً بَعِيدًا] (النسآء:٦٠)

ژباړه: آیا هغو کسانو ته دې نه کتلي چې ګمان کوي چې دوی پر هغه څه چې پر تا او تر تا پخوا کسانو باندې نازل شوي دي ایمان لري؟ حال چې غواړي (خپلې پرېکړو او فیصلو) واک شیطان ته وسپاري په داسې حال کې چې حکم ور ته شوی دی چې د شیطان له پیروی څخه ډډه

وکړئ شيطان غواړي چې ډير زيات يې بې لارې کړي .

أى اذا كان مستحسناً للكفر وراضياً به نفسه ... من رضى بكفر نفسه كفر، أى اجماعاً (شرح فقه اكبر / ملا على قاري ص ۴۸۴) .

۱۳- د کفارو موالات (دوستي او ملګرتيا) د اسلام او مسلمانانو پر خلاف د اهل علم په اتفاق سره کفر دی په هغه صورت کې چې د کفارو په قانون او سلطه باندې خوښ او راضي وي .

لقوله سبحانه وتعالى :

لا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ } [آل عمران:28]

ژباړه: (مؤمنان) پرته له مؤمنانو څخه کافران، دوستان او واکمنان نه نيسي او هر څوک چې دا (کار) وکړي نو د الله (له دوستۍ) څخه (ورته) څه نشته (خپلې اړيکې يې له الله سره وشلولې) .

او بل ځای الله سبحانه وتعالی فرمايي :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ) [المائدة:51]

ای مؤمنانو، يهوديان او نصرانيان دوستان مه نيسئ دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي او که له تاسې څخه څوک هغوی خپل ملګري ونيسي نو بيا هغه هم په همغوی کې شمېرل کيږي، پدې کې شک نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښونې بې برخې کړي دي .

تفسير الطبري ليكي :" لا تتخذوا أيها المؤمنون الكفارَ ظهراً وأنصاراً توالونهم على دينِهم، وتظاهرونهم على المسلمين من دون

المؤمنين، فإنه مَن يفعل ذلك، فليس مِن الله في شيء، يعني بذلك: فقد برئ من الله، وبرئ الله منه بارتداده عن دينه، ودخوله في الكفر."

يعنې : اى مؤمنانو كفار مه نيسئ په مدد كولو او ملاتړ سره، داسې چې د هغوى موالات (دوستي او مدد) وكړئ او دا چې د هغوى دين ظاهر او مسلط شي پر مسلمانانو پرته له مؤمنانو، او هر څوک چې دا (كار) وكړي نو د الله (له دوستى) څخه (ورته) څه نشته (خپلې اړيكې يې له الله سره وشلولې). پس په تحقيق هغه له الله خپلې اړيكې پرې كړې او الله تعالى له هغه نه خپلې اړيكې وشلولې په سبب د ارتداد او كفر سره.

او سعدي رحمه الله پخپل تفسير كې ليكي :[وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ] (الممتحنة: ٩):

" إن الظّلم يكون بحسب التولي، فإن كان تولياً تاماً كان ذلك كفراً مخرجاً عن الإسلام.

وقال" :لأنّ التولي التّام يوجب الانتقال إلى دينهم، والتولي القليل يدعو إلى الكثير، ثم يتدرّج شيئاً فشيئاً، حتى يكون العبدُ منهم."

يعنې: ظلم د كفر د مرستې، محبت او دوستي په اندول دى، كچېرې دا موالات (دوستي او مدد) پوره او تام وي (چې په زړه كې د كفر عقائد او پر مسلمانانو د كفر سلطه او قانون خوښوي) دا كفر دى او وتل دي له اسلام څخه.

او وايي: تام موالات واجبوي ګرځيدل د هغوى دين ته (كفر ته)، او لږ موالات بلنه كوي ډيرو ته، بيا ورو ورو پورته كيږ او بلاخره دا چې بنده د هغوى شي.

أى اذا كان مستحسناً للكفر وراضياً به نفسه ... من رضى بكفر نفسه كفر، أى اجماعاً (شرح فقه اكبر / ملا على قاري ص ٤٨٤) .

۱۴- د علم غيب دعوى او همدارنګه د علم غيب د خبرو تصديق كفر دى، دا كه ساحر، كاهن وي، نجومي وي او بل څوك وي .

و منها: ان تصديق الكاهن و المنجم بما يخبر من الغيب كفر، لقوله سبحانه وتعالى: [قُل لاَّ يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ الْغَيْبَ إِلاَّ اللَّهُ ..] (النمل: ۶۵) .

و لقوله رسول الله صلى الله عليه وسلم: «مَن أتَي كاهِنَاً فَصَدَّقَهَ بِمَا يَقُولُ فَقَد كفَر بمَا أنزَلَ عَلَي مُحَمَّدٍ صَلَّي الله عَلَيهِ وَ سَلَّم»

(حاشيه ابن عابدين ۴/۲۴۲، شرح فقه اكبر / ملا على قاري ص ۴۱۶) .

ابن عابدين د صاحب هدايه په حواله ليكي : هر چې علم نجوم دى پس هغه پخپل ذات كې شه دى بد نه دى كوم چې د حساب د قسم څخه وي او دا حق دى لكه په قرآنكريم چې راغلي {الشمس والقمر بحسبان} د نجوم كوم علم چې د ستورو له حركاتو او افلاكو څخه بحث كوي كوم چې د الله تعالى په قضاء او قدرت سره حركت كوي نو دا جايز دى لكه طبيب چې د علم په ذريعه د يو كس په جوړوالى او مرض باندې حكم كوي، مګر كه څوك د الله تعالى په قضا عقيده ونلري او پخپله د غيب دعوى كوي دا كفر دى (حاشيه ابن عابدين ۴/۲۴۳).

## حكم د هغه چا چې مسلمان ته ووايي اى كافره !

په حديث شريف كې راغلي دي: إذا كفر الرجل أخاه، فقد باء بها أحدهما » (رواه مسلم).

ژباړه: هر چا چې خپل مسلمان ورور په كفر باندې متهم كړ يقيناً يو د هغوى به په هغه باندې اخته كيږي او د هغه ګناه د هغوى نه د يو كس په غاړه كيږي.

د جمهورو فقهاؤ قول دادى چې په پورته حديث شريف كې د كفر كلمه حقيقي كفر نه دى

بلکي د جرم، ګناه او حرمت د وجې ده، خو داسې ویل سخته ګناه ده (تحفة الفقهاء ۲/۲۳۱) .

**د لمانځه د تارک حکم:**

د فقهاء کرامو په دې باندې اتفاق دی که څوک د انکار د وجې لمونځ، زکات، روژه او حج ترک کړي مرتد دی، مګر که څوک یې د غفلت او سستی له وجې ترک کړي په دې اړه درې اقوال دي.

**اول قول:** د احنافو په نزد څوک چې د سستی له وجې لمونځ نه کوي کافر کیږي نه بلکي فاسق دی هغه به تر هغه پورې بندي کیږي څو توبه وباسي او لمونځ وکړي (ابن عابدین ۱/ ۳۵۲) .

**دوهم قول:** د امام احمد او ځینو شافعیه فقهاؤ دی چې هغه به د ارتداد په سزا قتل کیږي.

**دریم قول:** د امام مالک، امام شافعي او حنابله د ځینو فقهاؤ دی چې هغه کافر کیږي نه خو سزا یې قتل دی، مرتد نه دی لکن دا چې د لمونځ ترک کول ستر جرم دی نو د هغه سزا قتل دی . (برنامج الموسوعة الفقهية (۲۲/۱۸۷)

**د تکفیر په حکم کې احتیاط**

په یو کس باندې د کفر حکم کول سخته خطرناکه او د احتیاط څخه ډکه مسئله ده په دې باره کې د اهل سنت و الجماعت مذهب وسط دی چې وایي: مونږ اهل قبله ته هیڅکله کافر نشو ویلای او نه هم څوک په ګناهونو کافر ګڼو بلکي د اهل سنت و الجماعت مذهب د کفر او ارتداد ثابتولو لپاره شرایط وضع کړی دي، مثلاً که څوک حرام حلال وګڼي، د کوم مؤمن به شي څخه انکار وکړي د هغه د کفر او ارتداد ثابتولو لپاره پوره تحقیق پکار دی په هغه څه کې چې کوم د کفر موانع بلل کیږي لکه: جهل، اکراه، تأویل او نور .

ځکه د تحقیق، حجت او دلیل پرته په یو مسلمان باندې د کافر حکم کول سخت سخرناک دي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي:« إذا كفر الرجل أخاه، فقد باء بها أحدهما» (رواه مسلم).

ژباړه: هر چا چې خپل مسلمان ورو په کفر باندې متهم کړ یقیناً یو د هغوی به په هغه باندې اخته کیږي او د هغه ګناه د هغوی نه د یو کس په غاړه کیږي.

پورته چې مونږ د ارتداد کوم اسباب ولوستل عمومي دي مګر په یو معین شخص د دغو اسبابو حکم ثبوت، دلیل او حجت غواړي .

مثال :

زمونږ عقیده ده چې که هر څوک د الله تعالی په عذاب ورکولو کې شک وکړي کافر دی مګر که دا حکم یو معین شخص ته متوجه شي تحقیق او حجت ته اړتیا لري د هغه شک خو به د جهل، تأویل، اکراه او بل څه په وجه نه وي .

حذیفه رضی الله عنه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت نقل کړی دی چې فرمایي :

«إِنَّ رَجُلاً حَضَرَهُ الْمَوْتُ، فَلَمَّا يَئِسَ مِنَ الْحَيَاةِ أَوْصَى أَهْلَهُ: إِذَا أَنَا مُتُّ فَاجْمَعُوا لِي حَطَبًا كَثِيرًا، وَأَوْقِدُوا فِيهِ نَارًا، حَتَّى إِذَا أَكَلَتْ لَحْمِي، وَخَلَصَتْ إِلَى عَظْمِي فَامْتُحِشَتْ، فَخُذُوهَا، فَاطْحَنُوهَا، ثُمَّ انْظُرُوا يَوْمًا رَاحًا فَاذْرُوهُ فِي الْيَمِّ، فَفَعَلُوا، فَجَمَعَهُ اللَّهُ، فَقَالَ لَهُ: لِمَ فَعَلْتَ ذَلِكَ؟ قَالَ: مِنْ خَشْيَتِكَ، فَغَفَرَ اللَّهُ لَهُ».
(بخاری:3452)

یو سړی د مرګ په حالت کې وو، کله چې د خپل ژوند څخه نا هیلی شو خپلې کورنی ته یې داسې وصیت وکړ: کله چې زه مړ شوم، پر ما باندې ډیر خاشاک جمع کړئ او زما جسد ته

اور واچوئ داسې چې غوښې مې له مينځه لاړې شي او هډوکو ته ورسيږي او ما په پوره توګه وسوځوي بيا مې هډوکي واخلئ او د ژرندې په وسيله يې ميده کړئ بيا داسې يوې ورځې ته انتظار شئ چې باد وي او هغه په درياب کې تيت کړئ، هغوی همداسې وکړل، الله تعالی هغه جمع کړل او ورته يې وفرمايل: ولې دې داسې وکړل؟ ويې ويل د تا د وېرې له وجې او بلاخره الله تعالی هغه وبښلو .

نومړي سړي په آخرت او بيا ژوندي کېدو ايمان لرلو مګر هغه په دې باره کې جاهل او ناپوهه وو او داسې ګمان يې وکړ که دا کار وکړم زما څخه به پوښتنه ونشي او ده دا کار د الله د وېرې په وجه کړی وو .

**د تکفير په حکم کې د احتياط کولو په باره کې د فقهاؤ اقوال :**

ابن عابدين رحمه الله وايي: د کفارو پنځه اصناف دي: هغه چې د الله تعالی د خلقت څخه منکر دي لکه دهرين، او هغه چې د الله تعالی د وحدانيت څخه منکر دي لکه: مجوسيان او مشرکين، او هغه چې په وحدانيت اعتقاد لري مګر د رسولانو څخه منکر دي لکه: فلاسفه، او هغه چې د ټولو (د الله تعالی د وجود او رسالت) دواړو څخه منکر دي او هغه چې يوازې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د رسالت څخه منکر دي

بيا وايي: او پوه شه چې په مسلمان باندې به د کفر حکم نه کوئ امکان لري د هغه د خبرې اړخ په يو ښه اړخ پورې اړه ولري چې د هغه په کفر کې اختلاف وي ولو که په ضعيف روايت هم وي (الدر مع ردالمحتار ٢٨٧/٣) .

همدارنګه ابن عابدين رحمه الله وايي :

يو مسلمان په بد کلامۍ او بد ګفتارۍ مه کافر کوئ، ځکه امکان لري د هغه په خبره کې

څه تأويل وي، داسې چې امكان لري دا تأويل د هغه د بدو اخلاقو او قبيح معاملاتو نتيجه وي او د اسلام پر بنا نه وي نو نه شايي چې په هغه باندې د كفر حكم وشي (درالمحتار ۲۱۹/۳).

صاحب د البحر الرائق وايي: او يقيناً ما پخپل ځان باندې دا الزام كړې دى چې زه به په هغه څه كې فتوى نه وركوم د كوم شي په كفر كې چې مشائخو اختلاف كړى وي.

قاضي خان پخپله فتاوى كې وايي: كچېرې څوك په غلطۍ سره د كفر كلمه له ژبې وباسي نه كافر كيږي مګر دا چې په قصد سره وي.

ابن حجر الهيثمي شافعي رحمه الله وايي: پر چا باندې به تر هغه د كفر حكم نه كيږي تر څو د هغه تفسير او تحقيق نه وي شوى، تر څو د هغه نه پوښتنه وشي چې قصد او مطلب يې څه وو، كه يې قصد كفر وو، نو كفر به وي او كه بل څه وو نو نه كافر كيږي (الفتاوى الكبرى ۲۳۹/۴).

علامه القاري د ابن حجر رحمه الله نه نقل كوي چې هغه وايي: د اكثرو پخوانيو او معاصرو علماء په نزد صحيح قول دا دى چې: اهل بدعت او اهل هوا نه كافر كيږي بلكي په صريح كفر سره نه په الزام سره ... (شرح المشكاة لعلي القاري).

علامه القاري رحمه الله وايي:

كوم فرعي مسائل چې په هغو كې صحابه كرامو رضوان الله تعالى عليهم او أئمه كرامو اختلاف كړى ځكه چې د اختلافي مسائلو دلائل قطعي نه بلكي ظني وي او ظني دلائل د صحيح او خطاء تر مينځ څرخيږي.

پس هيڅ څوك دې د كفر، ګمراهۍ او فسق حكم نه لګوي، ځكه چې دا په فرعي مسائلو كې اختلاف دى نه په اصلي كې.

پس مونږ همیشه دغه د الله تعالی قول ذکر کوو چې فرمايي :[إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ] (الحجرات :۱۰) .

ژباړه :يقيناً چې مؤمنان ټول په دين کې سره ورونه دي نو پس صلح او جوښت کوئ تاسې په مينځ د ورونو خپلو کې او ويرېږئ له الله تعالی څخه ښايې چې پر تاسې رحم وشي .

(شرح فقه اکبر لقاري المکي ص ۵۳۴)

**د کفر موانع**

مخکې مو وويل چې پر چا د دليل پرته د کفر حکم کول سخت خطرناک دي .

د دليل او حجت پرته نه د چا تکليف او سزا شته او نه هم د کفر حکم لګول .

لقوله سبحانه وتعالی :[وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّى نَبْعَثَ رَسُولاً] (الاسراء : ۱۵).

ژباړه : او نه يو مونږ عذاب ورکوونکي (هيڅ طائفې ته) تر هغه پورې چې وليږو کوم رسول (چې لاره د توحيد او شريعت ورته بيان کړي) .

**د کفر د حکم موانع په لاندې ډول دي:**

**اول جهل:** کيدای شي يو کس د الله تعالی په حکمونو پوه نه وي په يوه کفري ټولنه کې استوګن وي يا د بې علمه او جاهلو خلکو په مينځ اوسېدلی وي او داسې مسلمانان ډير شته چې هغه د جهل او ناپوهۍ په ټولنو کې اوسيږي نو په داسې کس باندې د مرتد حکم ډير سخت وي بلکې پوره تحقيق غواړي.

مګر جهل هغه وخت عذر بلل کيږي چې د خپل توان او وس موافق يې د جهل لرې کولو، علم حاصلولو او يا د کوم عالم څخه پوښتنه کولو ته هيڅ لاس رسی نه وي شوی .

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَاكُمْ] ) (محمد:١٩).
ژباړه: نو (اى پيغمبره!) پوه شه چې نشته هيڅ لائق د عبادت مګر يوازې الله دى او مغفرت بښنه غواړه د ګناه خپلې او د پاره د مؤمنانو سړيو او مؤمنانو ښځو او الله ته معلوم دى ځاى د ګرځېدو ستاسې او ځاى د هستوګنې ستاسې.
او الله سبحانه وتعالى فرمايي :[فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ] ) الانبياء:٧).
ژباړه: پس پوښتنه وکړئ له خاوندانو د ذکر (علماؤ) څخه کچېرې تاسې نه پوهيږئ .
و قد صرح قاضي خان في فتاواه بان الخاطىء اذا جرى على لسانه كلمة الكفر خطأً لم يكون كفراً عند الكل، بخلاف الهازل ان يكون قصداً (شرح فقه اكبر للمكي ص ٤٤٦) .
او قاضي خان پخپله فتاوى کې دا نظر ورکړى چې: کچېرې غلطي کوونکى کله د خپلې ژبې څخه په غلطى او خطاء سره د کفر کلمه ووايي نه کافر کيږي په نزد د ټولو مګر دا چې په قصد سره وي .
مګر که څوک قصداً د کبر او عناد او د حق څخه د مخ اړولو په مقصد قصداً ځان نه پوهوي نو د داسې کس لپاره جهل او ناپوهي عذر نه بلل کيږي .
لقوله سبحانه وتعالى :[وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا مِمَّنْ يُكَذِّبُ بِآَيَاتِنَا فَهُمْ يُوزَعُونَ *حَتَّى إِذَا جَاءُوا قَالَ أَكَذَّبْتُمْ بِآَيَاتِي وَلَمْ تُحِيطُوا بِهَا عِلْمًا أَمْ مَاذَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ] (النمل :٨٣-٨٤).
ژباړه :او هغه ورځ را ياد کړه چې مونږ به د هر امت هغه خلک چې زمونږ آيتونه يې دروغ ګڼل ژوندي را پورته . او بيا به ټول سره يو

ځای تم شي . تر څو تول راشي، نو رب به يې ورته ووايي: آيا تاسې زما آيتونه درواغ ګڼلې وو؟ په داسې حال کې چې هغه مو تر بشبړې علمي څيړنې لاندې نه وو راوستلي؟ او آيا تاسې څه کړنه درلوده؟

او همدارنګه فرمايي :[بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا بِعِلْمِهِ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ كَذَلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظَّالِمِينَ] (يونس٣٩) .

ژباړه :بلکي هغه څه يې درواغ وګڼل چې پوهه يې نه ده ورته رسيدلې او نه يې تر اوسه د هغه مفهوم په سترګو ليدلی دی . له دوی نه وړاندې خلکو هم همدا وړ د درواغو نسبتونه کړی وو نو وګوره چې بلاخره د ظالمانو پای څه شو؟

د ځينو فقهاء کرامو په نزد د الله تعالی په وجود او وحدانيت نه پوهېدل عذر نشي کيدای ځکه دې مسئلې ته د هر انسان سالم فطرت ځواب ويلای شي ځکه چې انسان په همدې فطرت باندې پيدا شوی دی .

لقوله سبحانه وتعالى: [وإذ أخذ ربك من بني آدم من ظهورهم ذريتهم وأشهدهم على أنفسهم ألست بربكم قالوا بلى شهدنا ...] (اعراف ١٧٧) .

ژباړه: او کله چې ستا رب د آدم د اولادې له شاګانو څخه د هغوی ځوځات راويستلو او بيا يې پخپلو ځانو شاهدان نيولي وو . چې آيا زه ستاسې رب نه يم؟ ټولو ځواب ويلی وو چې هو ته زمونږ رب يې په دې مو شاهدې ده .

**دوهم ـ تأويل د شرعي احکامو:**

داسې چې يو کس شرعي احکام داسې تفسير او معنی کړي چې مراد ترينه شرعه نه وي، پخپل فهم کې خطا شي، ګمان کوي چې په حق دی مګر

فهم او تأويل يې د شريعت خلاف وي، لكه مرجئة ډله، معتزله ډله او خوارج.
مګر هغه تأويل چې د شرعي احكام د تفسير له مخې نه بلكي د خپلې رايې او هوا له مخې وي د قبول وړ نه دى .

**دريم ـ اكراه او مجبوريت:**

داسې چې پر كوم كس باندې ظالم مسلط شي او د عذاب څخه د خلاصون په نيت په ژبه باندې څه د كفر كلمات ووايي مګر زړه يې په ايمان مطمئن وي.
لقوله سبحانه وتعالى: [إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ] (النحل:١٠٦) .
ژباړه: مګر كه په زوره كفر ته مجبور او زړه يې په ايمان مطمئن وو نو بيا خير .
او رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "رفع عن أمتي الخطأ والنسيان وما استكرهوا عليه "(رواه ابن ماجة والبيهقي) .
يعنې زما د امت خطاء، هيره او اجبار نه ليكل كيږي، يعنې څوك چې د خطاء، هيرې او اجبار له مخې څه وكړي شرعاً په هغه نه نيول كيږي .
ابن ابى شيبه له حسن څخه او عبدالرزاق پخپل تفسير كې له معمر څخه نقل كوي چې :
مسيلمه كذاب دوه كسان ونيول د هغوى څخه يې يو كس ته وويل: د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په باره كې څه وايې؟ هغه وويل: محمد د الله تعالى رسول دى . ويې ويل زما په باره كې څه وايې؟ ويې ويل ته هم رسول يې . هغه كس يې خوشي كړ . بل ته يې وويل: د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په باره كې څه وايې؟ هغه وويل: محمد د الله تعالى رسول دى . ويې ويل زما په باره كې څه وايې؟ هغه وويل

کوڼ یم . دری ځلې یې دا سوال تکرار کړ هغه همدا ځواب ورکړ . مسیلمه هغه په قتل ورسولو .

د دې دواړو کسانو خبر رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورسید، ویې فرمایل: اول کس د الله تعالی له رخصت او اجازې څخه استفاده کړې او دوهم کس حق ښکاره کړی دی او پر حق یې عمل کړی دی .

**د اکراه او مجبوریت لپاره لاندې شرطونه دي :**

١- دا چې مُکره د هغه دفع کولو څخه عاجز وي و لو که فرار او تیښته هم وي .
٢- دا چې د مُکره غالب گمان وي چې کچېرې داسې ووایم نو زه به نجات تر لاسه کړم .
٣- فقط دومره ویل ورته جایز دي چې بلاء وربان‌دې دفع شي .
٤- کله چې زور ورنه لرې شو نو اسلام به څرگندوي .
٥- داسې زور او عذاب چې هغه یې توان او طاقت نلري لکه د کوم اندام پرې کول او یا ډېر سخت وهل.

**څلورم ـ خطاء:**

داسې چې یو کس سهواً په بې فکری سره د کفر کلمات ووایي .

لقوله سبحانه وتعالی :[وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَا أَخْطَأْتُمْ بِهِ] (الاحزاب:٥) .

په پورته څلورو واړو حالاتو کې سړی معذور بلل کیږي او په هغه باندې څوک د کفر ټاپه نشي لگولای .

**توبه**

د توحید او ایمان بیان وشو، د شرک بیان وشو چې شرک د الله تعالی په حق کې ستر ظلم دی ځکه چې انسان الله تعالی پیدا کړی هغه روزي ورکوي او د هغه په هستی کې اوسیږي بیا چې د هغه (جل جلاله) سره بل څوک شریک نیسي په رښتیا چې ستر ظلم دی، همدارنګه کفر چې د الله تعالی د وجود او ستري هستی څخه انکار دی ستر ظلم او بغاوت دی او همداسې ټول ګناهونه د الله سبحانه وتعالی د مهربانه او مینه ناک دربار څخه لوی بغاوت دی .

سره د دغو ظلمونو او بغاوتونو مهربان څښتن (جل جلاله) ټولو بنده ګانو ته د توبې او رجوع کولو لاره پرانستې ده او خپلو یاغي بندګانو ته په ډیره مهربانی سره ارشاد کوي چې :

[يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لاَ تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ] (الزمر ٥٣).

ژباړه: ای زما بنده ګانو! کومو کسانو چه پر خپلو ځانونو تیری کړی دی د الله له رحمت څخه مه ناهیلې کیږی یقینًا الله ټولی ګناوی بښي هغه خو بښونکی اومهربان دی.

د [الذنوب جميعاً] څخه مطلب د کفر او شرک په شمول ټول ګناهونه دي، ابن کثیر رحمه الله لیکي: هذه الآية الكريمة دعوة لجميع العصاة من الكفرة وغيرهم إلى التوبة والإنابة، وإخبار بأن الله يغفر الذنوب جميعا لمن تاب منها ورجع عنها، وإن كانت مهما كانت وإن كثرت وكانت مثل زبد البحر. ولا يصح حمل هذه الآية على غير توبة؛ لأن الشرك لا يغفر لمن لم يتب منه (تفسير ابن كثير، سورة الزمر) .

په دې باره کې نور آيتونه هم راغلي دي چې ځينې په لاندې ډول دي :

قوله سبحانه وتعالی: وَالَّذِينَ لا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا ءاخَرَ وَلا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلا بِالْحَقِّ وَلا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ يَلْقَ أَثَامًا، يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا (الفرقان 68-69)

ژباړه: او هغه خلك چې نه بولي له الله پرته بل معبود او څوک نه وژني هغه چې حرام کړی الله مګر په حق سره، او نه کوي زنا او څوک چې دا کار وکړي نو هغه ښکيل شو په ګناه کې دوه چنده به وي هغه لره عذاب په ورځ د قيامت او پروت به وي په هغه عذاب کې سپک شوی .

او د دغو سترو جرمونو د بيان وروسته فرمايي: إِلاَّ مَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلاً صَالِحًا فَأُوْلَئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا (الفرقان 68-70).

ژباړه: مګر هغه کسان چې توبه ايستلې وي او ايمان يې راوړی وي او ښه عمل يې کړی وي د دغسې خلکو بدي به الله (جل جلا له) په ښو واړوي او الله (جل جلا له) بخښونکی او مهربان دی .

او همدارنګه فرمايي :

[ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا إِلا الَّذِينَ تَابُوا ] (النساء: ۱۴۵، ۱۴۶).

ژباړه: بې شکه چې منافقان د اور په ډير ښکته پوړ کې دي او ته به هيڅکله د دوی لپاره مرستندوی ونه مومې، مګر هغه کسان چې توبه وباسي (له نفاقه) .

د پورته آيتونو څخه څرګنده شوه چې الله سبحانه وتعالی پخپل فضل او مهربانی د کفر

او شرک، او ټولو ګناهونو څخه د خپلو یاغي بندګانو رجوع او توبه قبلوي .

خو په توبه کې بېړه کول پکار دي ځکه د مرګ نیټه نا معلومه ده .

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّى إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ] (النسآء :١٨) .

ژباړه: خو د هغو کسانو توبه نشته چې د مرګ تر غرۍ، غرو بد کارونه کوي او چې مرګ ویني وايي اوس مې په رښتیا توبه ده او د هغوی توبه هم نشته چې په کفر مړه کیږي . د دوی لپاره مونږ دردناک عذاب تیار کړی دی .

**د توبې او استغفار فضيلت**

**توبه د کامیابی سبب دی :**

وَتُوبُوا إِلَى اللهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (النور 31)

مؤمنانو! تاسی ټول د خپلو ګناهونو نه الله تعالى ته توبه وباسې ددي دپاره چې کامیاب شئ

**توبه د عذاب څخه د نجات سبب ګرځي :**

فَإِنْ يَتُوبُوا يَكُ خَيْرًا لَهُمْ وَإِنْ يَتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ عَذَابًا أَلِيمًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُمْ فِي الْأَرْضِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ [التوبة: 74] .

ژباړه: (اوس) كه دوى توبه وكړي، دا به دوی ته ښه وي او كه مخ واړوي الله پاک به دوى په دنيا او آخرت كې په دردناک عذاب سره وكړوي او دوی ته به د ځمكې پر مخ نه كوم دوست وي او نه هم مرستندوی .

**الله تعالى د بنده په توبه خوشحالیږي :**

وعن أبي حمزةَ أنسِ بنِ مالكٍ الأنصاريّ - خادِمِ رسولِ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم: للهُ أفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ مِنْ

أَحَدِكُمْ سَقَطَ عَلَى بَعِيرِهِ وقد أضلَّهُ في أرضٍ فَلاةٍ (متفق عليه).

ژباړه: له ابي حمزه انس بن مالک انصاری رضی الله عنه خادم رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی:

چه د یوه کس نه په یوه دښته یا صحرا کې خپل اوښ ورک شوی وي او هغه پیدا شي نو دغه کس به څومره خوشحالیږي - بس الله تعالی ددی نه هم زیات د خپل بنده په توبه ویستلو خوشحالیږي.

**د استغفار نه مطلب مغفرت یعنې بخښنه غوښتل او په گناه اعتراب کول دي :**

قوله تعالی: وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (المزمل 20)

ژباړه :له الله جل جلاله څخه بخښنه وغواړئ یقیناً الله جل جلا له بخښونکی او مهربان دی.

**استغفار د نعمتونو د زیادت سبب دی :**

وَيَا قَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَى قُوَّتِكُمْ ولاَ تَتَوَلَّوْاْ مُجْرِمِينَ [هود: 52].

ژباړه: ای زما قومه! له خپل رب څخه بخښنه وغواړئ بیا هغه ته ور وگرځئ (توبه وباسئ) څو له آسمانه پر تاسې شېبې، شېبې باران را کوز کړي او ستاسې پر زور (نور) څواک هم زیات شي او د گنهکارانو په څیر مخ مه اړوئ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: و الله انی استغفرو الله و اتوبو الیه فی اکثر من سبعین مرة (البخاري).

په الله جل جلا له قسم چې زه په ورځ کې له اویا ځلو زیات د الله جل جلا له څخه مغفرت غواړم او د هغه دربار کې توبه وباسم .
عن ابن عباس رضی الله عنهما قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : من لزم الاستغفار جعل الله له من کل ضیق مخرجاً و من کل هم فرجاو رزقه من حیث لا یحسب (سنن ابی داؤد) .
چا چې استغفار کول پر خپل ځان لازم وګرځول نو الله جل جلا له به ده ته د هرې سختۍ څخه د خلاصون لاره پیدا کوي او د هر درد او غم څخه به یې خلاصوي او د داسې طرف نه به رزق ورکوي چې د ده ګمان هم نه وي .
و بالله توفیق *وصلی الله علی خیر خلقه* محمد وآله وصحبه وسلم اجمعین
حمدالله شاکري
علم شرعي : الأکادیمیة الاسلامیة
علم عصري : انجنیري ، کابل پوهنتون

# مأخذونه


1. قرآنکریم – ترجمه او تفاسیر
2. کتب احادیث
3. فقه اکبر / امام ابي حنیفه
4. شرح فقه اکبر / ملا علي قاري
5. عقیده الطحاویة / امام طحاوي
6. عقیده / الأکادیمیة الاسلامي – دوکتور سهل عتیبي
7. شرح الطحاویة / محمد بن أبی العز حنفي
8. موسوعة الفقهیة / هیئت علماء الاسلام
9. فقه اسلامي وادله / دوکتور وهبة زحیلي

10. اصول الدين عند ابى حنيفه / دوكتور محمد عثمان الخميس
11. مناقب ابى حنيفه / للمكي
12. نواقض الايمان / دوكتور محمد بن عبد الله بن علي الوهيبي
13. حاشيه ابن عابدين / محمد أمين بن عمر بن عبد العزيز عابدين
14. بحر الرائق / ابن نجيم مصرى
15. بدائع الصنائع / للكاساني
16. كفايت المفتي / كفايت الله دهلوي
17. فتاوي اللجنة الدائمة / علماء كبار حرمين
18. فتاوي البلد الحرام / علماء حرم شريف
19. تبين الحقائق / للزيلعى الحنفي
20. مجموع الفتاوي / ابن تيمية